# نیو لیک

## پنځم څپرکی :



## شپږم څپرکی :

# تقریظ

لرغونپوهنه پرنسپونه او میتودونه ) ددې رسالې نوم چې محترم پوهنوال محمدرسول باوري له سریزې او نتیجې نه پرته په شپږو څپرکو کې په روانه پښتو لیکلی دی.

له کومه ځایه چې خبر یم دغه اثر په دغه موضوع کې په پښتو ژبه لومړی مستقل اثر ګڼل کېږي .ددې موضوع په اړه به ځینې مقالې لیکل شوي او دلته او هلته خپرې شوي وي خو د مستقل اثر په حیث تر اوسه پورې په افغانستان کې بل چا دغه کار نه دی کړی او دا یوازې باوري صاحب دی چې دغه علمي او ډېر مهم او ګټور اثر یې د تحقیق او تبتع له ټولو منل شویو موازینو او معیارونو سره سم لیکلی دی .زه په خپل وار ده ته کور ودانی او شاباسی وایم او په دغو علمي کارونو کې ورته نورې هم بریاوې غواړم .

ارکیالوجي [ Archeolgy ] یا لرغونپوهنه یو نوی او تازه علم دی چې د نولسمې پېړۍ په لومړیو کلونو کې منځته راغلی او د همدې پېړۍ په وروستیو کې د یو علم په حیث وپېژندل شو، په دغه لږې موده کې دې علم راوښودله چې دعلومو د لویې کورنۍ په غړو کې یو ډېر مهم او ګټور غړی دی .دا دخپلې کورنۍ له ځینو غړو سره نږدې

،دوستانه ا و متقابلې ا و له ځينو نورو سره يو جانبه روابط لري ياني ځينې علوم له دې علم نه مرسته غواړي لکه تاريخ ،قبل التاريخ،انتروپولوجي، کرونولوجي،سوسولوجي، ... او بيا ځينې نور علوم له دې سره مرسته کوي لکه جيولوجي،مساحت کيميا ،بيولوجي،فزيك ...

دی علم د ځمکې پر مخ د انسان د منځته راتلو ا و خوړېدو په متعلق پخواني ذهنيتونه ا و تصورات سم کړل ا و هم يې د بشر عمر مليونونو کالو ته ورساوه.

همداسې د لرغونو تمدنونو په اړه يې هم پخواني خيالات ا و انګېزې تصحيح کړل ا و دا يې ثابته کړه چې د پخوانيو تمدنونو زانګو په لويديځ کې نه، بلکې په ختيځ کې ده، دې علم په همدې توګه ډېر نور مهم ا و ګټور کارونه کړي دي چې زه يې دلته نه څېړم

لرغونپوهنه داسې يو علم دی چې د انسانانو مادي پاتې شوي اثار په خبرو راولي ا و په دې توګه له تاريخ ا و قبل التاريخ ا و نورو علومو سره مرسته کوي. زياتره مورخين په دې عقيده دي چې ليکلي اثار کتيبې د تاريخ ليکنې ا و د ماضي د احيا لپاره د اهميت له پلوه په لومړۍ درجه کې راځي، ځکه چې هغوی ژبه لري ا و خبرې کوي او خپل وخت حالات بيانوي .خو زه وايم چې د هغو په خبرو ا و بيان کې هومره فصاحت ا و بلاغت نه شته ا و دا د لوستونکي کار دی چې څه مطلب ترې اخلي ا و څرنګه يې تعبير ا و تفسير کوي. موږ پوهېږو چې هر لوستونکی عين مطلب ترې نه اخلي ا و ددې تعبير او تفسير استنباط کې هم توپيرونه ضرورليدل کېږي نو په دې صورت کې ليکلي اثار دومره زيات د اعتماد ا و اطمينان وړنه ګڼل کېږي بر عکس مادي پاتې شوي دي.

اثار ا و ابدات که څه هم لکه چې ليکل شوي اثار ژبه نه لري خو د خپل وخت حالات په ډېر فصاحت بلاغت او وضاحت سره بيانوي ا و د هغوی دبيان په تفسير ا و تعبير کې د لرغونپوهانو تر منځ هومره

اختلافات نه لیدل کېږي ا و زیاتره توافق لري مثلا یوه مجسمه راواخلئ او په ځیر ورته وګورئ هغه به درته ووایي چې کله جوړه شوې ده ؟څه یې اغوستي دي؟ نژاد یې کوم ا و دین او مذهب یې څرنګه وو؟ ډېره لري او که نه؟ زوړ دی ا و که ځوان ؟ د سر وېښتان یې څرنګه جوړ کړي دي؟ په غاړه ،غوږو ا و لاسونو کې یې څه راز ګاڼې اچولې دي؟ ا و په دې توګه به د خپل عصر ښکلا پېژندنه ،رسوم ،عادات ،معتقدات ،هنر او صنایع ا و ډېر نور څه بیان کړي او خپل دغه بیان کې هم صداقت لري او له همدې کبله اکثره لرغونپوهان په خپل بیان کې سره موافق دي.

دا علم دهرې منطقې ا و هر هېواد په تېره بیا د افغانستان لپاره ډېر اهمیت لري په افغانستان کې دغه علم د نولسمې پېړۍ په دویمه لسیزه کې خپل لومړنی قدم ایښی دی. ا و له دې وخت نه راپه دې خوا یو زیات شمېر لرغونپوهان افغانستان ته په رسمي ا و نا رسمي توګه راغلي دي ا و دغه هېواد یې د خپلو څېړنو ا و کیندنو له پاره یو جنت ګڼلی دی ا و دومره اثار یې رابرسېره کړي ا و لاس ته راوړي چې د شرق ا و غرب موزیمونه پرې ډك شوي دي.

په افغانستان کې د لرغونپوهانو د کار ا و زیار په نتیجه کې راښکاره شوه چې دا هېواد یو ډېر لرغونی هېواد دی ا و له زرګونو کالو راهیسې په لومړنیو انسانانو اباد وو ا و په خپله منطقه کې د یو شمېر زړو تمدونونو، عقایدو، اجتماعي سیستمونو، هنري مکتبونو او مقتدره امپراتوریو دمنځته راتلو، انکشاف اوپراختیا مرکز ګڼل کېده.

د نورو هېوادونو تاریخي ابدات زیاتره د ځمکې پر سر په خپل ځای کې لاتر اوسه پورې په هماغسې رنګك ولاړ دي خو په افغانستان کې د تاریخي ابداتو یو لږ شمېر دلته تر سترګو کېږي ا و نور ټول تر ځمکې لاندې پټ پراته دي دا ځمکه چې افغانستان د خپل اوږده تاریخ په ترځ کې د مهاجمینو ،متعارضینو ا و یرغلګرو په لاس څو ځله وران ویجاړ

شوی دی او زیاتره تاریخي ابدات یې له خاورو سره خاورې شوي، نو ځکه نن له سترګو پټ دی او څوك یې نه ویني .

په تېره بیا د افغانستان د ولسونو او لرغونپوهانو وظیفه ده چې د افغانستان د خلکو فرهنګي شتمني رابرسېره او خوندي کړي او جهان ته وښایي چې افغانان که نن په ګېډه مړه ا و په تن پټ نه دي خو د فرهنګ ا و کلتور له پلوه دومره شتمن ا و ماړه دي چې لرې ا و نږدې هېوادونو سره یې بې دریغه ا و سخاوتمندانه مرستې کړي او د هغوی خصوصي ا و ملي موزیمونه یې ډك ا وماړه کړي دي.

د افغانستان هره دره غونډۍ او هره دښته لرغونپوهان ځان ته رابولي چې راشئ او وسپړئ تاریخي اثار ا و ابدات رابرسېره کړی

دا رساله د همدې مقصد لپاره ډېر اهمیت لري ځکه چې افغانان د لرغونپوهنې له اساساتو او میتودونواو اصطلاحاتو سره اشنا کوي، او هغوی دې ته رابولي چې که له یوه ځایه بل ځای ته ځي نو د لارې په ترڅ کې باید خپل شا وخوا ته په دقت وګوري ا و بې پروا ا و بې اعتنا ورځنې تېر نه شي او خپل قدمونه هم په ډېر احتیاط کېږدي، ځکه خدای مه کړه چې کوم تاریخي قیمتي اثر تر پښو لاندې ا و مات نه شي.

په پای کې زه ددې اثر په غور لوستلو ا و ځان پوهولو ته هغه ښاغلي رابولم چې په رښتیا غواړي د افغانستان پر تاریخي اهمیت باندې پوه شي ا و د هغه په فرهنګي غنا باندې ځان خبر کړي ا و په مجموع کې افغاني ټولنه ښه وپېژني که څه هم چې د محترم باوري صاحب دغه رساله به سمدلاسه څوك دغه هدف ته ونه رسوي ځکه چې دا تاریخ نه دی خو د یوې ټولنې د تاریخي درك او پیژندلو لپاره سرې ته صادقانه او عالمانه لارښوونه کوي چې دا په خپل ذات کې ډېر اهمیت لري.

په درناوي

پوهاند محمدحسن ضمیر صافی

د اجتماعي علومود پوهنځي استاد

# یادښت

دانسان د پیدایښت د ځای او د لومړنیو ټولنو د روښانه تصور د علمي پیژندنې اوهمدارنګه د هغوی څرنګوالی، د اقتصادي او ټولنیزو سیستمونو د جوړښت او په ټولنیزه توګه د انسان د کلتور په هکله دېره موده مخکې په طبیعي او ټولنیزوعلومو کې ځینې مطالعې اوڅېړنې شوي چې ګټورې پایلې ترې لاس ته راغلي دي.
په هغه وخت کې چې کلاسیکو علومود پخواني انسان په هکله ځینې هېښنده تیوري څرګندوله نو د اروپا درسانس دورې (دتېرې زمانې) د پاتې توکواو اوزارو د څېړنې لاره يې اواره کړه. له صنعتي انقلاب څخه وروسته د کیندنو په لارو چارو کې د نوي تخنیک څخه په زیاته کچه د ګټې اخستنې له کبله د لومړني انسان پاتې شوني او توکي ومیندل شول دبېلابېلو میندل شوواثارو له څرنګوالی سره د مینې او د جیولوجي د

ځوان علم په مرسته چې د لرغونو توکو د نېټې د ټاکلو زيات امکانات لري، دميندل شويو اثارو په توضيح او ځرګندولو کې زياتوالى راغى او د لرغونپوهنې ارزښت يې نور هم لوړ کړ. د اتلسمو او نولسمو پېړيو په اوږدو کې د ځمکې د ختيځو کلاسيکو او لرغونو تمدنونومطالعې او نويو ميتودونو د ميندل شويواثارو څېړلو او تحليلولواو په پاى کې د انسان د اصلي پيدايښت ځاى علمي پلټنو د لرغونپوهنې پرمختيا ته لاره اواره کړه او لرغونپوهنه (اركيالوجي) يې د يو سيستماتيك دسپلين په څېر منځته راوستله.

د لرغونپوهنې پيدايښت او پرمختيا او د علمي پلټنو پايلو د ماقبل التاريخ د تېر وخت په اړه زياتې پوښتنې ځواب کړې، چې په ټوليزه توګه يې د لومړنيو انساني ټولنو د دوروترمنځ د پېژندنې اړيکو ته پراختيا ورکړه اودادى اوس يې د علومو په منځ کې غوره ځاى نيولى دى.

له لرغونپوهنې سره مينه او ليوالتيا يوازې ددې پوهې د كارپوهانو او ځانګوالو تر بريده نه ده پاتې، بلکې د ټولنيزې پرمختيا په څېر يې د ټاټو خلکو پاملرنه، له نظر د بېل والي،اختلافاتو، شغل او کلتوز سره سره ځان ته رااړولې ده، همدارنګه د لرغونپوهنې د څېړنو، ميندنو (لاسته راوړنو) پايلو د عامه اطلاعاتي رسنيو او دټولې نړۍ د زيات شمېر خلکو پام ځان ته اړولى دى. دلرغونپوهنې ميتودونه دهغوى لپاره د تاريخ معلومولو او پوهېدلو غوره سرچينه ده. ځکه چې(تاريخ) لرغونپوهنه په وروستيو کلونو کې له پوهنيزو تخکنيونو څخه په كار اخستلو سره د زياتو انکشافاتو او لاسته راوړنو شاهده ده.

د شلمې پېړۍ شپېتم کلونه د نظرياتو او مفكورو د شكل له پلوه په طبيعي او ټولنيزو علومو کې يوهېښنده دوره وه. د تخنيك د مقدار او ځرنګوالي په كارول، د توكو د اندازه كولو نظريې اوپد يدې ددې دورې ټاکونکې ځانګړتياوې وې.

نویو علمي نظریود یو سیستم په داخل کې دعناصروبېلابېل فکتورونه منځته راوړل ځکه چې په یو سیستم کې ټول عناصر له یو اوبل سره متقابلې اړیکي لري چې په ټولیزه توګه یې همدغه اړیکي اواغېزې څېړي. د بېلګې په توګه د نفوسو، ګڼوالې اود ډېروالې بیلانس د عناصرو او بېلابېلو فکتورونوپه څېر له یو او بل سره متقابلې اړیکي او اغېزې یې د ایکولوژي د سیستم په وسیله څېړل کېږي دهمدې اصل په ټینګار یوسیستم د فکتورونو د ټولو اړخونود څېړونکي په حیث کولای شي چې دیوسیستم څرنګوالی،ټولنیز اړیکي او مناسبات په یو ماډل کې مطرح کړي.

د شلمي پېړۍد شپیتموکلونو په وروستیو کې د امریکې په متحده ایالتو کې د یو شمېر پوهانو په هڅه او هاند لرغونپوهنه د پرمختیا لوړو پوړیو ته ورسېده چې په متحده ایالتو نو کې د نوي بدلونو نو په ترځ کې یې په تبلیغاتي ډول د (نوې لرغونپوهنې) نوم ورکړ، په تېرو شلو کلونو کې لرغونپوهان په دې هڅه کې وو، چې د څېړنې اوسپړنې میتودونه،تخنیکونه او د هغوی تعبیراو تفسیر په لرغونپوهنې د تیورۍ (سیستم) او (منطقوي ماډل) پر بنسټ ودروي.

په هر حال شل کاله مخکې هم په میندل شویواثارو د لرغونپوهنې ډېر کارونه ترسره کېدل خونن لرغونپوهنه په هغوټولو اړوندو موضوعګانو چې په ماقبل التاریخ کې په تېر شوي انسان پورې اړه لري د ساحوي څېړنې تر څنګ په تحلیلونو ، تفسیرونو ، تعبیرونو او د تیوریو په تدوین او د سیمه ییزو نمونو پر جوړولو لګیا ده .

په اوسني وخت کې د لرغو نپوهنې بنسټیزه موخه د عمومي تیوري پرمختیا ده چې وکولای شي د ماقبل التاریخ انسان دژوندد بدلونونو په هکله پوره پوهه راوښیې، ددې هیلې په تر سره کولو سره د یو پیشبیني شوي ماډل د پیداکېدو امکان دی چې وکولای شي دهغه مهم اړخونه او د وخت ډلبندي توضیح او روښانه کړي لاس ته راځي، لازمه پوهه په

همدې تيوري کې نغښتې چې لرغونپوهنه د (ثبت شوي تاريخ د مرحلې پورې ته لوړوي.

د لرغونپوهنې په څېړنو او پلټنو کې له نويو ميتودونواوتخنيکونوڅخه ګټې اخستنې په تېرو ۲۵ کلونو کې د څېړنو او مطالعو مزي نورهم غزولي دي او همدارنګه اقتصادي اوتاريخي لرغونپوهنې هم ددې علم په پرمختيا کې ستر رول لوبولی دی.

اقتصادي لرغونپوهنه د لومړنيو انساني ټولنو ترمنځ اړيکې څېړې ياپه بله وينا اقتصادي لرغونپوهنه دماقبل التاريخ ټولنو ترمنځ د راکړې ورکړې او سوداګرۍ څرنګوالی راښيي، ددې څانګې د لاس ته راغلو توکو د مطالعې له مخې د هغه وخت د تخنيک د پرمختيا د کرکرۍ په برخه کې ځيني توکي د يادولو وړدي.

همداشان ددې واقعيت په نظر کې نيولو سره چې د پخوانيو ټولنو پېژندنه چې هېڅ رنګ ثبت شوي اثار يې نه شته خو د لرغونوميندل شويو اثارو له لارې کولای شو چې د تاريخي لرغونپوهنې په وسيله د هغو د ليکنو او انځورونو په څرنګوالی پوه شوچې په لرغونو اثارو کښل (تراشل) شوي دي.

د هغه ميتود څرنګوالی چې د اصلي ليکنو او انځورونو لپاره ترې ګټه اخستل کېږي د هغو اثارو په څرنګوالي پورې اړه لري چې ليکنه پرې شوې وي.

پر هغه څه چې وغږېدم کولای شم چې ووايم د ګران افغانستان په پوهنيزو اوڅېړنيزو حلقو کې د يو داسې پوهنيز اثر چې د لرغونپوهنې عمومي بحثونه په کې په ميتوديکه اوتيوريکه توګه څېړل شوي وي د رامنځ ته کېدو ضرورت يې له ډېره وخته راهيسې حسابيده. مخکې له دې د هېواد په تعليمي او تحصيلي ټولنو کې او د کابل پوهنتون د ټولنيزو علومو د پوهنځي د محصلينو لپاره ددې اثر ضرورت تر ټولو زيات محسوسېده له نيکه مرغه ښاغلی پوهنوال محمد رسول باوري

دغه علمي تشه د (لرغونپوهنه). په ليکلو ډکه کړه او د مينه والو ضرورت يې پوره کړ.

ددې ترڅنګ ښاغلی پوهنوال باوري په کابل پوهنتون کې د لرغونپوهنې استاد و ، د نوموړي ګټوروکارونو ددې علم د لاښې روښانتيا لپاره دپوهنيزو ليکنو او څېړنيزو اثارو د خپرولو له لارې ډېر ښه کار تر سره کاوه. نوموړی د هجرت په کاله کې هم د خپل مسلك پر علمي څېړنه بوخت و.

د ښاغلي پوهنوال محمد رسول باوري اثر (لرغونپوهنه) په حقيقت کې د هغو ميتودونو او څېړنو له اصولو څخه کار اخيستل دي چې په دې وروستيو کلونو کې ترې د لرغونپوهنې په علم کې ګټه واخيستل شوه اود پرمختيا سبب شول. (لرغونپوهنه) د يو ميتوديك اثر په څېر په خپلو شپږو فصلونو کې د پرمختللې لرغونپوهنې د يو لړ موضوعګانو پوره انځور باسي.

له علمي ميتودونو اوپرنسپونوڅخه په ګټه اخستنې سره د مفکورو له څېړلو د منطقي تسلسل سره يوځای موضوعات په روښانه توګه مطالعه کوي چې په اخره کې يولنډيز او پايله هم لري

## (لرغونپوهنه اونوروعلومو سره يې اړيکې)

د لومړي څپرکی عنوان دی چې په کې د لرغونپوهنې پيژندنه توضيح او تشريح او له نورو علومو سره يې اړيکې په کې څېړل شوې دي. بې شکه له هر پوهنيز دسپلين او د څېړنې له نورو علومو سره تر يوځاکلي بريده اړيکې لري او د مرستندويه علومو په څېر يې له ميتودونو او تخنيکونو څخه د څېړنو په پايلو کې ګټه اخلي.

لرغونپوهنه تر ډېره حده له طبيعي او اجتماعي علومو سره ډېرې نږدې اړيکې لري چې په (لرغونپوهنه) کې پرې په ډېره ښه توګه بحث شوی دی له

دي جملې څخه د جيولوجي د ميتودونو او څېړنوله اصولو څخه ګټه اخيستل د لرغونپوهنې بنسټيز توکي دي.

په نړۍ کې (ژوندی اورګانيزم) يو جيولوجيکي مفکوره ده داهغه وخت منځ‌ته راغله چې بيولوژي لا د ځانګړي علم په حيث منځته نه وه راغلې.

د اورګانيزم تاريخ د(paleontologie) په وسيله ټاکل کېږي چې دا د جيولوجي يوه څانګه ده چې د حيواناتو او نباتاتو فوسيلونه چې د تيرو په پو ړيوکې وي مطالعه کوي.

د جيولوجي هغه څانګه چې د تيرو په پوړيوکي د حيواني او نباتي فوسيلونو د ځای پر ځای کېدو وخت ټاکي او څېړي د تاريخي جيولوجي په نوم يادېږي. په داسې حال کې چې د تيرو د طبقود مقطع ګانو عمر د ستراتيګرافي د علم په وسيله ټاکل کېږي. دا درې علوم ياني تاريخي جيولوجي،پاليونتولوژي او ستراتيګرافي د يواو بل سره زنځيري تړاو لري.له هغو ميتودونو او تخنيکونو څخه چې د تيرواوځمکې د پوړيو وخت او عمر په ټاکلو کې په پورتنيويادوشويوځانګو کې ترې ګټه اخيستل کېږي په لرغونپوهنه کې هم ترې غوره ګټه اخيستل کېږي د لرغونپوهنې د څېړنو پايلې د وخت ټاکونکي ميتودونو څخه په ګټې اخستنې پورې اړه لري. په لرغونپوهنه کې له لاندې څېړنيزوارونو او علمي ميتودونو څخه کار اخيستل کېږي د ځمکې د پوښ د پوړونو او د تيرو تاريخ ټاکونکي ميتودونه،د توپوګرافی له نقشو او اطلسونو څخه، د جغرافيې دپېچلو موضوعاتوپه څېړلوکې د هوايي فوتوګرافی څخه، د جغرافيې په ټاکلو سيستمونوکې د فکتورونو او مختلفو پديدوپه څېړلو کې د تيوری له سيستم څخه. همداشان د بشري جغرافيې مطالعه په ځانګړی توګه د نفوسو جغرافيه چې د نفوسو شميره، د ګڼوالي اوزياتوالي کچه او د نفوسو داقتصاد د لوړوالی

ځانګړتیاوې، دنفوسو د جغرافیې وېش اوپراختیا، نژادونه او اتنوګرافي هم په خپله لمن کې رانغاړي، هم د لرغونپوهنې د څېړنو او تحلیلونو په غوره منابعو کې شمېرل کېږې یا بالعکس د اقتصادي او تاریخي لرغونپوهنې د مطالعو اوڅېړنو پایلو بنسټ تاریخي جغرافیه ده. د لرغونو سیمو نومونه چې د هغوی له ډلې څخه د افغانستان لرغوني سیمي لکه

جګوده(Joguda) پختوس یا پختیکا، اراکوزیا، ګندهارا، بخدی، نیساپا، هریوا، ویکرنه او داسې نور د لرغونپوهنې له مخې میندل شوي دي. په ټولیزه توګه د لرغونپوهنې ټول اړیکي له نوروټولوعلومو سره په لومړۍ څېرکي کې په ښه توګه څېړل شوي دي.

د(اثر) دویم څپرکی څېړنې،مطالعې او (ساحوي څېړنې ) ته ځانګړی شوی دی.

په دې برخه کې د ساحوي څېړنود پرمخ وړنې لپاره د جغرافیايي موقعیت تثبیت لازم دی چې د توپوګرافیکي نقشواود هوايي فوتوګرافی څخه ترې ځانګړې ګټه اخستل کېږې د موقعیت له تثبیت څخه وروسته د پلټنو او د ځمکې پرمخ د سپړنو د تخنیك مرحله پیلېږي اولابراتوارونه د میندل شویو اثارود عمر د ټاکلو له لوري هر اړخیزه څېړنه اوځرګندونه کوي.

د(لرغونپوهنه) لیکوال په هالنډ کي د لرغونپوهنې دعملي پلټنو او د کیندلوپه لړۍ کې د مستقیم ګډون له کبله دساحوي څېړنو په برخه کې د علمي اوعملي تجربو دلاسته راوړلو لپاره د کار دلارو چارو، میتودونو اوعلمي تخنیکونو څخه کاراخیستل انځوروي.

د دریم څپرکی په څېړنیزه لړۍ کې دلاس ته راغلوتجربو انعکاس په (اثر) کي ارزښتمنه اضافه ده.

په څلورم او پنځم څپرکیو کې د لرغونو اثارو یانې د ختینو لوښو، فلزي اثارو او عضوي اثارو د بیا جوړولو موضوګانې شاملې دي، لرغوني اثار باید په موزیم کې خوندي کړی شي چې د څېړنو بنسټ جوړوي. او همدارنګه د لرغونو اثارو څېړل د شکلونو او میتودونو د څېړنو له نظره لکه د لرغوني اثارو شکل څېړنه. د وخت او ځای څېړنه مطالعه کوي.

شپږم څپرکی د لرغونو اثارو د تاریخ ټاکنې میتودونو ته ځانګړی شوی دی. په دې برخه کې د تاریخ ټاکنې بېلابېل میتودونه یانې د ستراتیګرافی میتودونه، تیپولوژي میتودونه چې د تاریخ ټاکنې نسبي میتودونه دي، د کاربن ۱۴ طریقه، د پالیو مګنیتیي طریقه، د اندروکرولوژي طریقه په غوره ډول په کې څېړل شوي دي.

لرغونپوهنه په مستقیم ډول د لرغوني تاریخ ټاکنې له پلوه د تقویمي سیستم دامکاناتو لرونکې نه ده خو په طبیعي علومو کې د میتودونو انکشاف او پرمختیا د لرغونپوهنې لپاره دا امکان برابر کړی دی چې له هغې څخه په ګټه اخستنې سره نه یوازې د لرغونو اثارو سم تاریخ ټاکی، بلکې د پېښو کرونولوژي چې په شکل او د کلتور په تکامل کې لاس لري هم په کې څېړل شوي دي.

په لرغونپوهنه کې د مطلق تاریخ ټاکنې له میتود څخه کار اخیستل په په لومړي کتار کې ځای لري.

له دې میتود څخه د ګټې اخیستلو وجه داده چې په تولو نړۍ کې تري ګټه اخستل کېږي او هیڅ برید (محدویت) نه پېژني.

هاغه څه چې غالباد تاریخ ټاکنې د میتودونو په اړه په لرغونپوهنه کې په کار وړل شوي دي او په زړه پورې ښکاري دهغوی بېلابېل والی دی، داسې ښکاري چې د مختلفو میتودونو بېلابېل والی دلبندي شوی وي پرته د هغو پرنسیپونو له تو پیر‌ونو او تخنیکونو څخه چې د فزیك او کیمیا په علومو کې وي او په دوی پورې اړه لري.

همدارنګه د وخت تاکنې نوي میتودونه کولی شي چې نوي میتودونه کشف کړي اوسني پراخو درجه بندیو ته نوره هم پراختیا ورکړي.

زه ښاغلی پوهنوال باوري ته ددومره ارزښتمن کتاب په لیکلود زړه له کومې مبارکی وایم او د نورو پوهنیزو او څیړنیزو اثارو د منځ ته راوړلو لپاره ورته نور زیات بری او توفیق غواړم.

د (لرغونپوهنه) اثر نه یوازې د محصلینو او د علم د مینه والوضرورت د لرغونپوهنې په برخه کې پوره کوي، بلکې ددې کتاب څیړنیزارونه، میتودونه،او پرنسیپونه به دهغو لیکوالواوپوهانو لپاره غوره اخذ وي چې د لرغونپوهنې د څیړنیزواوپوهنیزوموضوعاتود لیکلوسره مینه لري.

پوهنمل عارفي.

هالنډ د ۲۰۰۰ دسمبر

# يادونه

زمــوږ هېوادوالــو د ووروسـتيو پنځوســو كلونــو پــه بــهير كــې د لرغونپوهنې په اړه د ډېرو مطالعـاتو او څېړنوله كبله د خپـل هېواد لــه تـاريخ او فرهنـګ سـره ډېره بلدتيـا موندلـې ده. دا څېړنـې د كورنيـواو بهرنيو متخصصينو او پوهانو له خوا ترسره شوې دي. په دې اړه كولاى شـو خـداى بښلــى عبدالحـى حبيبــي، اروابـاداحمدعلــي كــهزاد، مسـتمندي، اروابـادغبـار، پوهـاند ميرحسـين شـاه، پوهـاند الفشـاه

ځدراڼ، طرزي او يو شمېر نور چې بهرني متخصصين دي، لکه مېرمن لويس دوپري، کزال، الچين، کارلتول مسن، جان، مارشال، کرشمن، مشينك، پوګاچينګوا، سريندي، ج.ګ.شو او داسې نور ياد کړو.

سربېره پردې د کابل پوهنتون د ټولنپوهنې ډيپارټمنټ يو شمېر ښوونکو هم له ډېرو ستونزو سره سره وکړای شول خپل علمي اثار د لرغونپوهنې محصلينو او مينه والو ته وړاندې کړي چې له دې جملې څخه يو استاد رسول باوري دی چې د لرغونپوهنې په اړه يې زيات شمېر اثار او ليکنې محصلينو او مينه والو ته وړاندې کړي دي.

د لرغونپوهنې له اثارو څخه يو دا دی چې ښاغلي رسول باوري په دې وروستيو وختونو کې د مهاجرت پرمهال په پښتو کښلی دی. دا اثر شپږ څپرکي لري، چې په لاندې ډول دي:

په لومړي څپرکي کې لرغونپوهنه په علمي توګه راپېژني او ددې پوهې اړيکي له نورو هغو سره پرتله کوي.

په دويم څپرکي کې دسيمه ييزو لرغونپوهانو څېړنې ارزول شوي، چې په دې اړه ډېر تاريخي او جغرافيايي معلومات له يو شمېر شفاهي موادو سره راټول شوي دي، چې دلرغونپوهنې محصلين او مينه وال په ښه توګه وکړای شي ددې پوهې په څېړلو سره خپله لار په سمه توګه لنډه کړي.

درېيم څپرکی: په هالېنډ کې د لرغونپوهنې څېړنې ته يوه کتنه: په دې برخه کې ليکوال د هالېنډ د لرغونپوهنې د علمي چارو څېړنه کړې ده.

څلورم څپرکی: د لرغونو اثارو موندنه او بيارغونه: ليکوال په بنسټيز او علمي ډول دلرغونپوهنې مجهز لابراتوار تر څېړنې او شننې لاندې نيولی، ختمين، اوسپنيز او عضوي اثار يې په ماهرانه توګه رغولي دي.

پنځم څپرکی: دلرغونو اثارو شننه او څرګندونه: دا څپرکی دشکلي شننې، زماني او مکاني ارزونې، سیاقي شننې او د لرغونو اثارو د څېړنې او شننې پر بنسټ ولاړ دی.

شپږم څپرکی: دلرغونو اثارو میتود جوړونه: دا څپرکی پر دوو برخو وېشل شوی: د تاریخ جوړونې نسبي میتود او دتاریخ جوړونې مطلق میتود. لیکوال په پای کې د کتاب پایله په دې ډول بیانوي چې ددې کتاب په لیکلو کې د کورنیو او بهرنیو لیکوالو له اثارو څخه کته اخیستل شوې، چې نومونه یې هم د کتاب په پای کې راغلي دي.

لیکوال وړاندې تردې چې دا کتاب ولیکي؟ په دې اړه یې یو شمېر خورې ورې لیکنې هم وکړې، د یادونې وړ ده چې پر ۱۳۷۰ ل کال دې لیکوال دې کتاب ته ورته یو کتاب هم کښلی او په کابل دولتي چاپخونه کې چاپ شوی و، له بده مرغه ډېر لږ شمېر یې د مینه والو لاسته ورغلی، پاتې یې سوځېدلي دي.

څرنګه چې زه د استاد باوري له ګټورو کارونو او په خپله دده له شخصیت سره د کابل پوهنتون له پېر راهیسي بلد یم، نو دا اثر یې پر دې ستایم چې په داسې سختو حالاتو کې هم استاد باوری خپل قلم نه دی ایښی او لاهم هڅه کوي چې دلرغونپوهنې د محصلینو او مینه والو لپاره خپلو څېړنو ته دوام ورکړي او همدا راز ددې کتاب چاپ او خپرول هم خپلو هېوادوالو ته یوه ګټوره هڅه ګنم.

په مینه

شاه محمود محمود

د ټولنیزو علومو پوهنځي د تاریخ څانګې استاد

# سریزه

نړیوال دپوهې په زور د ټولنې ا و طبعیت ټول پټ ا و ناسپړلي رازونه یو په بل پسې راڅرګندوي .

دا دی نـــن ســبا د طبعیـــت یـــو بـــل پـــټ راز [دانســـاني جـــن جوړښت]دجنتیکي پوهې په مټ برملا شو،چې دطبیعي علومو لپاره د ستر ا وښتون پیل ګڼل کېږي. د طبیعي ا وټولنیزو علومو د ودې یون د همدا سې سترو ا وښتونونو لړۍ ده ،هغه وخت چې چارلس لایل،لامارك ا و ډاروین دژوندیو موجوداتو په اړه خپله رایه څرګندوله او یا له هغه وړاندې یوناني فیلسوفانو د ژوندانه دمبدا او پیل څرك غوښته،او یا هغه وخت چې د مصر دلرغوني تمدن مخکښانو لیکدود منځته راوست او یا له هغه وخته چې لومړنیو انساني ټولنو منظم کورنی سیستم ومانه اویا هم له هغه وخته چې لومړني انسان د اور په لمبو کې ځان ته خواره

برابر کړل او یا تر هغه وړاندې لومړنیو انسانانو د کار وسیله وکاروله او یا دې ته ورته نورې پېښې،هره یوه د انساني ذهن د ودې په بهیر کې بېل باب او د پوهنې یوه ټاکلې مرحله څرګندوي چې په حقیقت کې هره یوه دا ډول پېښه د وروستیو پراختیاوو لپاره د ستر اوښتون پیل ګرځېدلی او منل شوی دی

پوهنه رڼاده داسې رڼا چې دانسان د څارونکي او لټونکي ذهن لپاره هر تورتم رڼا کوي او د هرې پوښتنې منطقي ځواب وايي،د پوهنو دا لړۍ یوازې دانسان د راتلونکي او یا اوسنیو حالاتو په پېژندنه او پوهنه محصوره او لنډه نه ده،بلکې دانسان د پخوانیو کړووړو او لاس ته راوړنو په اړه هم پر له پسې هڅې کوي،چې دهمدې هڅو له ټولیو څخه یو هم دلرغونپوهنې دسپلین،پیدایښت،وده او پراختیا ده

لرغونپوهنې هم دنورو علوموپه څېرد ودې ا و پرمختیا بېلابېلې مرحلې ترشا پرې ایښې دي په طبیعي ډ ول دهرې مرحلې ښېګڼې او برياوې بلې مرحلې ته لېږل شوي دي ا و د غلطیو ا و ناخوالو د تکرار ا و بیا کېدو مخنیوی شوی‌دی. ددې څانګې لارویانو د خپل ځان پر وړاندې هره ستونزه دپوهې په مټ ا و د نورو علومو په مرسته لرې کړې او د زیات زیار ګاللو په وجه یې د لرغونپوهنې پرنسیپونه ا و میتودونه رامنځته کړي او هغو ته یې وده ورکړېده .دتجویز ا و خطا له اصل څخه بیا تر استقرار ا و قیاس پورې له مادي ا و میتافریکي څرګندونو څخه بیا تر انالوجیکي تعیمم پورې د څېړنې بېلابېلې لارې یې طی کړي او دادی اوس یې په نړۍ کې د نورو علومو تر منځ ټاکلی مقام ګټلی دی

لرغونپوهنه سره له دې چې ځوانه پوهنه شمېرل کېږي ا و دخپل ذاتي پیدایښت [Archeology]دلرغونپوهنې څخه یې لا څلورمه پېړۍ نه ده پیل کړې .خو له هغو علمي څانګو سره دڅنګ وهلو جوګه ده چې د ذاتي تاریخ دپېړیو شمېرېې شلوته رسېږي او یا له هغو اوښتې دي

چې دا په خپل وار سره ددې علمي څانگې د اړتیا ا و پیاوړتیا بېلگه ده.که [ایساك دی‌پري]پر [۱۶۶۵م کال د ډبرینو وسلو په اړه لومړنۍ نظریې خپرولې ا و فرانسوي عالم [ماگودل]پر [ ۱۷۳۰م ] کال د ډبرینو وسلو دکارولو په ادعا له کنفرانس څخه په زور شړل شوی او یا [بوشته دی پتر]پر [۱۸۶۴م ] کال له[دکلتي څخه تر لوریالي پورې زمانه] د اثر لیکلو جرات کړی دی ا و یا فرانسوي لرغونپوه [لارته]د لرغونپوهنې لپاره ځینې اصطلاحات منځته راوړي او بیا پر [ ۱۸۸۰م ] کال د [گبرل مارتلیه] د [تاریخ پیلامه] تر نوم لاندې د لرغونپوهنې بېلابېلې دورې تصنیف کړې دا ا و داسې نورابتکاري اقدامات ټول د هغو هڅو پرله پسې لړۍ ده چې د لرغونپوهنې څانگه یې د هدف لورې ته د رسولو جوگه کړې ده.له ۱۹ پېړۍ را وروسته نور ددې څانگې داحکامو ا و نتیجوپه اړه دشك ا و تردیدځای پاتې نه شو.

د شلمې پېړۍ په پیل کې دلرغونپوهانوله خوا دلرغونې نړۍپه اړه بېلابېلې مفکورې ا و نظریې منځ ته راغلې،دا چې دبشري تمدن منشا له کوم ځایه پیلېږي؟ څنگه پیل کېږي او پراختیا مومي؟ ا و داسې نورې پوښتنې هغه محرکه پېلوزي وه چې دنړۍد بېلابېلو پوهانو ا و بېلابېلو علمي څانگو پام یې ځان ته راواړاوه د نامتو لرغونپوهانو [الیوشیمت،گوردن چایلد ،مورگان] له خوا طرح شوی هغه مساله چې ټول بشري تمدن له پخواني مصري تمدن څخه اخستل شوی او وده یې کړې ده د یو شمېر نورو پوهانو لکه [جیولیان استوارو،اومېرمن بوسراپ]له خوا وننگول شوه ا و دهغې طرحې خلاف یې دهرې سیمې پرامکاناتو او وړتیا تکیه وکړه ا و دبېلابېلو تمدنونو د پیداښت مساله یې توضیح کړه [چې لرغونپوهان لومړۍطرح د diffiusion او دویمه طرحه د culturalEcology په نوم یادوي] دې طرحو اودې ته ورته نورو مسایلو د لرغونپوهنې څانگې لپاره دمتودیکې ودې تر څنگ دتیوریکې ودې زمینه هم برابره کړه چې اوس په نړۍ کې زیات شمېر

اثار، مجلې او جريدې د لرغونپوهنې دبېلابېلو اړخونو د توضيح او تفسير لپاره خپرېږي د بېلګې په توګه لـه دوه سوه زياتې مجلې او جريدې يوازې هالېند کې دلرغونپوهنې په اړه دخپلو مينه والو لپاره خپروني لري.

دلرغونپوهنې په درې ګونو څانګو کې [دفتري لرغونپوهنه ،ساحوي لرغونپوهنه او ولابراتواري لرغونپوهنه]نامتو پوهان دشهرت لوړودرجوته رسېدلي او لرغونپوهنه يې هم د يوه منل شوي علم مقام ته رسولې ده.

دامريکايي لرغونپوه [دېتز](دلرغونو اثارو تحليل) اثر دفلسفي منطق په لرلو سره نه يوازې دا چې دلرغونپوهنې د تحليل او ارزونې سطحه يې د لوړتيا پوړيوته رسولې بلکې دنورو ټولنيزو علومو لپاره هم د ميتود او ارزونې دکړنلارې په توګه ګټور ثابت شوي او کارول شوي دي دهسپانوي لرغونپوه [انتونيو پاردو ]څېړنود هسپانې هېواد لرغونتيا په خپل اثر [نړۍ او لرغونې هسپانيا ۱۹۷۶م ]دومره وځلوه چې د نورې نړۍ د هېوادونو لرغونپوهان يې وپارول چې همداسې ليکنې يې وکړې په دې ډول پاردو په لرغونپوهنه کې ديو ټاکلي مکتب لارښود وګڼل شو.

[و. ی.سريا نيدې ] روسي لرغونپوه دميلادي کلونو دپيل پېړيو داسې سپړنې ترسره کړې [۱۹۷۹م ]چې په اسيا او اروپا کې يې سيالي نه شي کېدلای په دې ترتيب نوموړی د همدې پېړيو نامتو لرغونپوه وشمېرل شو، د امريکايي او انګليسي لرغونپوهانو څېړنې په مصر کې دبشري نړۍ د لومړي تمدن زانګو نړيوالوته وروپېژندله نوموړو پوهانو [لارډکارووالون او وکارتر] پر [۱۹۸۳م ] کال دتوتنخمان فرعون په پيدا کولو سره وځلېدل، دهالېندي لرغونپوه [ايوخين ديبوس لـه خوا د جاوانومي انسان ۱۹۴۰ م دفوسيل پيدا کېدل نړيوالو ته نوی ذهنيت ورکړ. دا او يو شمېر نور لرغونپوهان دمعاصرې نړۍ هغه ستوري دي چې لرغونپوهنه يې لکه چې ښايي نړيوالوته وښودله.

دنړیوالو ستورو تر څنګ په سیمه ییزه توګه ا و هم دهېوادونو په سطحه یو شمېر لرغونپوهانو داسې ښې پاېلې له خپلوڅېړنو څخه تر لاسه کړي چې نوم یې د نړۍد نامتو لرغونپوهانو په شمېر کې راغلی دی.

دترای لرغونی ښار ا و شلیمن ۱۸۷۰ ،کریت جزیره ا و ارتورایوانس ۱۹۴۱ ، دمصري تمدن ا و فرانسوي ماریت۱۸۸۱ ،دسومریانو امپراتوري ا و فرانسوي دی‌بترزیك ۱۸۸۸ .دسند مدنیت هړپه ا و موهنجودارو ا و سرجان مارشال ۱۹۲۲ ، اسان چیني یا تینانتروپ ا و فـي ونګ جونګ ۱۹۳۰ . دبابل ا و اشور تمدن ا وکال دوی اووی‌ادزري۱۹۱۴ . دایران دتیالك غونډۍ ا و ګیر شمن ۱۹۳۳ . دانقرې پا ګزکوی او الماني لرغونپوه ګ وینکلر د مرکزي امریکا لرغونې سېمې ا وامریکایي لرغونپوه جان دی ستیفن ۱۸۴۰ دمکسیکو سپړني او دواروسیلر ۱۹۱۰ . او یو زیات شمېر نور یادولای شو چې د سیمې ا ویا یوه هېواد سپړنې یې له خپل نوم سره تړلي دي

په افغانستان کې د لرغونو اثارو لټون ا و دلرغونو سیمو سپړل په رسمي توګه له۱۹۱۹ م کال وروسته پیل شوي دي، یو شمېر بهرني لرغونپوهان له خپلو هیتونو ا و ټیمونوسره هېواد ته راغلل ا و یو شمېر سیمې یې سروې ا و وسپړلې. ددې هیتونوپه ډله کې لومړی د فرانسوي ټیم یادونه کېږي چې دفوشه په مشرۍ پر ۱۹۲۲ مېلادي کال افغانستان ته راغلل ا و دسپړنو امتیاز یې تر لاسه کړ چې وروسته وروسته یې دهمکارۍ هڅو وده وکړه ا و د { D. A. F. A } په نوم یوخپلواکه موسسه پرانستل شوه چې دهېواد زیاتې سیمې یې سروې ا و وسپړلې.

له فرانسوي ټیم څخه وروسته په پرله پسې توګه روسي لرغونپوهان ، ګرتسوف او واویلوف ۱۹۲۲ اوبیاوروسته دهغوی پرله پسې هیتونه: ،امریکایي لرغونپوهان لوویس دوپري ۱۹۵۶ ا و بیا وروسته لارنس

نکل، کارلتون، سکون ا و نانسي دوپري ،هندي لرغونپوهان شري واستوا او کرشناديوا ۱۹۶۰ ا و بیاد هغوی وروستي ټیمونه .
جاپاني لرغونپوهان شوشن کویاما و ماوریزیوتوزي ۱۹۶۵ ،ایټالوي لرغونپوهان پروفیسر تري او نور یو په بل پسې هېوادته راغلل او له افغاني لرغونپوهانو ا و متخصیصنو سره یې یو ځای څېړنې ا و سپړنې ترسره کړې دي
لومړنې افغانان چې له بهرنیو لرغونپوهانو سره یې په څېړنو او سپړنو کې برخه اخستې ا و بیایې دهغو پر بنیاد ارزښتمن اثار لیکلي دي دشمېر له مخې زیات نه دي خو دکار ا و هغو ارزښت یې دومره اوچت دی چې ویلای شو دهېواد له لرغوني تاریخ ا و لرغونپوهنې سره یې نوم تړلی دی.
مرحوم شاهي بای مستمندي، مرحوم استاد احمد علي کهزاد ا و علامه حبیبي ددې متخصیصنو په لومړي مقام کې شمېرل کېږي. په افغانستان کې د علومو اکاډمۍ تر پرانیستلو وروسته د لرغونپوهنې خپلواکه اداره منځ ته راغله چې پخواني تجربه لرونکي مورخین ا و لرغونپوهان یې راټول ا و دهېواد د لرغونپوهنې دودې او پراختیا لپاره یې متې راونغښتلې ا و پر ۱۳۶۴ ل کال د کابل پوهنتون د اجتماعي علومو په پوهنځي کې د لرغونپوهنې او انسان پوهنې دیپارتمنت په پرانیستلو دځوانو لرغونپوهانو په روزنه ا و پالنه کې د علومو اکادمۍ د لرغونپوهنې انستیتوت سره اوږه پراوږه ارزښتمن ګامونه اوچت کړل. په دې برخه کې ددواړو ادارو اړوندانو په پوره مینه هڅې وکړې، په خاصه توګه د پوهاند داکتر الفشاه ځدراڼ پوهاند ولي محمدرحیمي، پوهاند سیدسلطانشاه همام، پوهنمل واك، پوهیالی‌عثماني، پوهنیار ام الخیرمقبل، پوهیا لی سید مسعود بدخش دکابل پوهنتون له خوا ا و د علومو اکاډمۍ له اړخه سرمحقق کبیر رنجبر، محقق میر احمدجوینده، محقق ظاهر یوسفزی، محقق عبدالواسع فیروزي، محقق محمدنادر

نادر، محقق شکیب سالك، محقق میر عبدالروف ذاکر اود نورو نه ستړي کېدونکې هڅې د یادونې وړ دي.

په افغانستان کې له ۱۹۲۲ م کال را په دې خوا بیا تر ۱۹۷۹ م کال پورې د بهرنیو او کورنیو لرغونپوهانو له خوا پر له پسې ا و منطقي سپړنې ا و څېړنې تر سره شوي دي، چې دڅېړنو پا یلې یې نه یوازې د افغانستان د لرغوني تاریخ، بلکې د سیمې ا و حتی د نړۍد بشري کلتوري تاریخ لپاره د ارزښت وړ ګرځېدلې دي.

د افغانستان د لرغوني هویت ا و ویاړنو په روښانتیا سره ددې ځانګې لارویانو یوازې د افغانستان ملي موزیم لپاره د څه نا څه اویا کالو په ترڅ کې تر سل زره زیات ارزښتناکه اثار ا و کلکسیونونه رایو ځای کړل ا و د هېواد ملي موزیم یې دنړۍ د نامتو فرهنګي زېرمو په لست کې شامل کړ، خو اوس له بده مرغه دا کلتوري زېرمې [موزیمونه ]یا بېخي تالاشوي او یا هم نیمګړي پاتې شوي دي.

له بوې خوا د هېواد کلتوري زېرمې له منځه تلل ا و دبیا بډای کېدو لپاره داثارو راټولولو ا و پیداکولوته اړتیا شته ا و له بلې خوا د افغا نستان په سلو کې نوي لرغونې ا و تاریخي سیمې علمي سپړنو او څېړنو ته انتظار باسي چې دهېواد لرغونې ویاړنې ا و لرغونی هویت راڅرګند شي، دهمدې دوه بنسټیزو غوښتنو له مخې مې ددې لنډې لیکنې اړتیا ولیدله اود لیکلو تکل مې وکړ. ددې تر څنګ کېدی شي د کابل پوهنتون د لرغونپوهنې ځانګې له خواځوانو محصلینو له پاره د[حفریاتو اصول ] د مضمون تر څنګ ملګری درسي مضمون وګرځي، باید یاده یې کړم هغه وخت چې د کابل پوهنتون د لرغونپوهنې دیپارتمنت کې په تدریس بوخت وم همداسې یوه هڅه مې کړې وه یو اثر مې د [لرغونپوهنې پرنسیپونه ا و میتودونه ] تر عنوان لاندې خپرېدوته تیار کړی و هغه خپور هم شو خو لاړ مطبعې له زېرمو نه ووتلې چې د ۱۳۷۱ کال خیل منځي جګړې پیل شوې، مطبعې ا ور واخیست ا و په





لمبو کې یې لرغونپوهنه هم لمبه شوه، داوروستی لیکنه هم دهغه اثر پر بنسټ ولاړه ده، له هغه اثر سره یې له ځانګړي توپیرونه دادي چې هم په هالېند کې دلیکوال دعملي زده کړو ا و تجربو زیاتې شوي ا و د هالندي لرغونپوهانو هغه کړنلارې په تفصیل یادې شوي چې د سپړنو پر وخت یې عملي کوي ا و یو شمېر نور مسایل چې لـه موضوع سره یې اړیکي نه درلودې ولې په پخواني اثر کې ځای شوې وې، په دې لیکنې کـې حذف شوي دي خو هغه څه چې کټ مټ رانقل شوي هغه دپوهاند ضمیر صافي هغه تقریظ دی چې دهماغه اثر له پاره یې لیکلی و.

همدا شان ددې لیکنې په پنځم فصل کې د پوهاند ډاکتر الفشـاه ځدراڼ له هغې ترجمې څخه پوره ګټه اخستل شـوې چې د امریکـایي لرغونپوه[یتز] د نامتو اثر [دلرغونو اثارو تحلیل ]څخه یې ژباړلې وه

په پای کې دلنډې پېژند ګلوی‌په نیت څرګندوم چې په دې لیکنه کې د موضوع اصلي بحث په شپږو فصلونو کې ترتیب شوی، همدا سریزه، په پای کې لنډیز ا و پایله ا وپه ورستیو پاڼو کې ددې اثر د لیکلو پر وخت د هغو کتابونو ا و اثارو لړی لیکل شوې چې د ګټې وړ ګرځېدلـي دي، هیله من یم دا اثر د لرغونپوهنې ځانګې د لارویانو پوښتنو تـه د منلو وړ او قانع کوونکي ځوابونه ولري

او د مینه والو لپاره په زړه پورې وګرځي

لوستونکو په درنښت

پوهنوال باوري روډن هالېنډ ۴/۸/۲۰۰۰

# لومړی څپرکی

**لرغو نپوهنه ا و له نورو علومو سره دهغې اړیکې**

**الف :لرغونپوهنه څه شی ده ؟**

لرغونپوهنه چې په دري ژبه کې ورته د باستانشناسي اصطلاح کارول کېږي د بېلا بېلو پوهانو له خوا په بېل بېل تعریف سره معرفي شوې ده، ددې علم لپاره لاتیني اصطلاح له دوو کلمو څخه [ Archeos] او [ Logos] ترکیب ده چې په یو ځایي ډول ورته [ Archeology] وایي.

دانګلیسي لرغونپوه [ W.clark] په نظر لرغونپوهنه د ټولنیزو علومو هغه څانګه ده چې په پر له پسې ا و منظمه توګه هغه منابع ا و مادي اثار لکه [دکار وسایل ،صنایع ،د ا وسېدو ځای او نور ] چې د پخواني کلتور د پېژندلو لپاره وسیله ګرځي مطالعه کوي [۲:۹] د

برونوف [ Brounov ] په عقیده لرغونپوهنه د پخوانیو او له منځه تللو انساني ټولنو د کلتوراو فرهنګ مطالعه ده خو اتنولوجي [Ethnology ] د اوسنیو معاصرو انساني ټولنو د فرهنګ ا و کلتور څېړنه ده. یو شمېر پوهانو لرغونپوهنه د انسان پوهنې [ Anthropology]څلورمه څانګه بللې ده. د نومورو پوهانو له نظره انسان پوهنه پر څلورو اساسي څانګو وېشل شوې ده چې فزیکي انسان پوهنه [Physical Anthropology ] ژبپوهنه [ Philology ] کلتور پوهنه [Ethnology ] ا و لرغونپوهنه [Archeology] ورته وایي [۹: ۳ ] په هرصورت ارکیالوجي اصطلاح داوولسمې پېړۍ په جریان کې د [Jacques Spon ]له خوا د لرغوني علم په مانا وکارول شوه چې اساسا هنري انداز یې مرجح شمېرل شوی و، خو اوس لرغونپوهنه هغه علم دی چې د مادي اثارو پر بنیاد د پخوانیو انسانانو ا و د هغوی د ټولنیز ژوندانه د بیا جوړونې ا و رغونې د توضیح دنده پر مخ بیایي [۳۴: ۲۶ ]. د لرغونپوهانو له خوا د لرغونپوهنې د بېلابېلو تعریفونو په نظر کې نیولو سره یو کلي مفهوم په بنیادي توګه عنوان کولای شو ا و هغه دا چې ددې علم [لرغونپوهنه ]په وسیله د پخوانیو انساني ټولنو د راپېژندلو چارې بري ته رسولای شو په دې ترتیب لاندې تعریف د لرغونپوهنې لپاره هراړخیز او د زیاتو لرغونپوهانو لپاره د منلو وړ ګڼل شوی دی. "لرغونپوهنه هغه علم دی چې د خپلو علمي اصولو پر بنیاد د لرغونو انسانانو ا و د هغوی د اړوندو ټولنو د هراړخیزې ودې څرنګوالی راپېژني"

کله ناکله د ځینو لیکوالانو له خوا د لرغونپوهنې ا و تاریخ تر منځ د اهدافو ورته والی رابرسېره کېږي په داسې حال کې چې د تاریخ دعلم دنده دا ده چې د ټولنو تکاملي سیر د پېښو په پرله پسې پیوند کې د زمان ا و مکان په قید سره وڅېړي ا و د یون لوری یې څرګند کړي.

تاریخ د خپلو احکامو د بیان ا و تصدیق لپاره شواهد ا و منابع وړاندې کوي چې په عمده ډول دا منابع لیکل شوي ا و تحریري اسناد دي، مورخین د خپلو علمي ا و خاصو حکمونو د صدور لپاره د خپلو منابعو ا و شواهدو د تدقیق ا و علمي څېړنې ځانګړې لارې او میتودونه لري، د هماغو علمي موازینو د مراعات ا و کارولو په صورت کې له حوادثو څخه د منطقي حکم د صدور زمینه برابر وي او په نتیجه کې د ټولنې او یا ټولنود تېر شوي حالت دقیق بیان او کامله شرحه خپلو مینه والو ته وړاندې کوي.

مورخین خپلې څېړنې ا و پلټنې تر هغه وخته په پوره او کامله توګه تر سره کوي چې تاریخي اسناد او تحریري منابع وجود ولري، کله چې لیکل شوي اسناد ا و منابع وجود ونه لري مورخ خپل هدف ته درسېدلو په منظور نورې لارې چارې لټوي، په دې مانا چې یا به د شفاهي څېړنو لوري ته مخه کوي یا به د عیني شاهدانو ا و یا به ځینو هغو اثاروته چې د پېښنو انعکاس وکړای شي مخ اړوي، چې په دې ټولو حالاتو کې د مورخ لپاره ټاکلي میتودونه ا ود څېړنې خاصي طریقې وجود لري چې له هغو څخه په ګټه اخستنې سره خپل هدف ته ځان ورسوي.

تر کومه ځایه چې پوهانو ا و څېړونکو معلومه کړې ده د انسان ا و د ځمکې پر مخ انساني ژوند د ملیونونو کالو را په دې خوا وجود لرې، خو د لیك ا و لیکنې دود د انساني ژوند د اوږده تاریخ په یوه ډېره لنډه زمانه کې منځ ته راغلی دی، ځینې پوهان په دې عقیده دي چې د انسان له خوا لومړنی لیکنې له میلاد څخه ۳۵۰۰ کاله وړاندې منځ ته راغلی دی. [۵:۱۱] په داسې حال کې چې د ځمکې پر مخ د لرغوني انسان د اوسېدو څه نا څه ۲۰ ملیونه کاله تېرېږي [۲۳۵:۳۴] په دې ترتیب یوازې ۵ زره کاله شاوخوا د تاریخي څېړنو لپاره ټاکل کېدی شي او له هغه نه وړاندې زمانه چې د څېړنې اړتیایې جدي محسوسېږي

باید د لرغونپوهنې د علم په وسیله تر څېړنې او مطالعې لاندې ونیول شي.

لرغونپوهانو د مورخینو په څېر خپله د څېړنې ساحه پر بېلا بېلو دورو وېشلې چې په دې برخه کې د څو ارزښتمنو او معیاري وېشنو د بېلګو یادول ضروري برېښي.

انګلیسي لرغونپوه کرستین تامسن [ Christian Tamson ] د لرغونپوهنې تر مطالعې لاندې ساحه پر دریو لویو عصرونو وېشلې ده.

لومړی عصریې د ډبرې عصر په نوم [ StoneAge ] دویم عصر یې د[ Bronz Age] او دریم عصریې د اوسپنې [ Iern Age] د عصر په نوم یاد کړی دی. [۸:۴ ] فرانسوي لرغونپوه ګبریل مارتلیه [Gebrail J.D.Martelia] د ډبرې عصر پر څلورو دورو وېشلی دی، د ډبرې پخوانۍ دوره [ Paleolitic] ،د ډبرې منځنۍ دوره [ Mesolitic] د ډبرې نوې دوره [ Newlitic] ،څلورمه او ورستۍ دوره د مس او ډبرې دوره [ Aeneolitic] یا [ Kalcolitic] په نومونو یادې کړې دي، [۶:۳ ] امریکایي لرغونپوهانو سرویس او سهلین [ Sarvic and Sahlien] د لرغونپوهنې تر مطالعې لاندې ساحه پر څلورو دورو وېشلې ده : لومړۍ دوره ګروپي ټولنه [ Band Socity] دویمه دوره قبایلي ټولنه [ Trabel Socity] دریمه دوره رس لرونکې ټولنه [ Chef doom] او څلورمه دوره یې د پاچا لرونکې ټولنې یا [King doom ] په نومونو یادې کړې دي. انګلس او مارګن [ Engals and Margan] تر تاریخ وړاندې زماني پر دریو برخو وېشي چې د وحشت [ Savage socity] بربریت [ Barbarity] او مدنیت [ Civilization] په نومونو یې مسما کړې دي.

لرغونپوهان د نورو پوهانو په څېر هدف ته د رسېدلو په لار کې له معینو پرنسیپونو او میتودونو څخه ګټه اخلي چې د هغو پرنسیپونو په کارولو سره منطقي نتیجې تر لاسه کوي. د بېلګې په توګه یو کمیاپوه

څېړنېزې عمده مرحلې چې د مشاهدې ،تشرېح او توضېح په نوم يادې شوي خپل هدف ته درسېدلو په منظور يو په بل پسې عملي کوي، په دې مانا چې د اوبو د ترکيب د پوهېدلو لپاره تر هر څه وړاندې داوبو مشاهده ضروري او حتمي ده، وروسته د اوبو ترکيب بايد تشرېح شي چې دکومو غازونو د ترکيب په نتيجه کې د اوبو يو ځاڅکی جوړېږي او بيا وروسته د غازونو د توضېح مرحله رارسېږي چې په هغه کې د H هايدروجن او O اکسيجن کميت ښودل کېږي او په پای کې څرګندېږي چې د اوبو په يوه وړوکي ځاڅکي کې د هايدروجن او اکسيجن يوه ټاکلې اندازه ترکيب شوې چې په نتيجه کې د اوبو کمياوي فورمول د[ $H_2O$ ] په ډول معرفي شوی دی.

ټولنيز علوم هم د طبيعي علومو په څېر د څېړنې ځانګړې لارې او ټاکلي روشونه لري چې له هغو څخه په ګټه اخستنې سره خپل هدف او منزل ته د رسېدو لار وهي .که د بېلګې په توګه ديوه تاريخي حکم د صادرېدو لپاره د مورخ څېړنيز ميتود ته پام وګرځوو يو مورخ د څېړنې خاص ميتود چې د طبيعي علومو په څېر مراحل لري پلي کوي هغه شواهد او اسناد چې د يوې تاريخي پېښې د ثبوت او څرګندتيا لپاره بايد وکارول شي په ذاتي توګه او بې له ټاکلو ميتودونو مورخ نه شي کولای شي هماغه سند وکاروي د يوه تاريخي حکم د صدور لپاره ضروري ده چې د تاريخ له څېړنيز ميتود څخه کار واخيستل شي،

کله چې مورخ ديوې پېښې په اړه څېړنه پيل کړي نو د هغې پېښې په اړه ليکل شوي اسناد او منابع لټوي [د منابع ډولونه او د هغو د را يوځای کولو ميتودونه هم يو له بل څخه متفاوت دي ] کله چې منابع او لازم ليکل شوي اسناد يې پيدا کړل بيا د هغو د دقيقې څېړنې لپاره له لاندې ميتود څخه کار اخلي چې د سند په اړه خپل يقين غښتلی او لازم اعتماد حاصل کړي.

سند

| مطلع | متن | اضافات |
|---|---|---|
| (حمد ،ثناوصفت او نور) | (اصل مطلب) | (مهر،طغرا،ترا‌په،امضا او نور) |

د سند ټولې پاڼې پر دريو برخو وېشل کېږي ،د سند لومړۍ برخه چې د مطلع په نوم يادېږي هغه مقدمه ده چې په کې حمد و ثنا و صفت يا د خپلې روغتيا يادونه او يا هم د اصلي متن لپاره يوه اشاره لري.

دويمه برخه د سند اصلي متن دی، په دې برخه کې اصلي مطلب او هغه موضوع چې بايد د مورخ لپاره د حکم د صدور زمينه برابره کړي ليکل شوې .او د سند دريمه برخه د [ اضافاتو ] په نوم يادېږي. په دې برخه کې د سند دقيق اصليت او صلاحيت ښودل کېږي په دې مانا چې هر تاريخي سند په ورستۍ برخه کې د يوې ادارې ،مقام او يا د بانفوذه شخص يوه علامه چې د طغرا،ټاپې،او يا ګوتې د نښانې په توګه تزين شوې وي وجود لري [۲۳:۱۸ ]

ميتود يوازې د علمي څېړنې د بېلابېلو طريقو مجموعه او مېخانيکي ټولونه نه ده چې د يوې موضوع د مطالعې لپاره له ژورتيا پرته او په تصادفي توګه خوښه شوې وي، بلکې ميتود په خپل ذات کې د څېړنې د يوې موضوع او يا پديدې په توګه د هغې د ذاتي قانونمنديو په واسطه ټاکل کېږي له همدې امله بېل علمونه او علمي فعاليتونه ځان ته جلا او بېل ميتودونه لري چې د علم د محتوا او د علمي څېړنې له وسايلو څخه ترکيبېږي [۱::۲۴ ]

لرغونپوهنه هم د نورو علومو په څېر د څېړنې خاصې لارې او ميتودونه لري هماغه د طبيعي علومو ميتود چې يو کمياپوه يې خپل هدف ته د رسېدلو په منظور تر لاس لاندې نيسي، په همدغه شان

لرغونپوه هم هماغه درې ګونې مراحل د خپلې څېړنې په تګلوري کې
کار وي چې دا مراحل د مشاهدې ،تشرېح او توضېح په نومونو یادېږي.
د لرغونپوهنې څېړنو لومړۍ مرحله د مشاهدې [ Observation] په
نوم یادېږي او د څېړونکي هغه هڅې او فعالیتونه رانغاړي چې په
لرغونپوهنه کې ورته د ساحوي تحقیق [ Feld warek] اصطلاح هم
کارول شوې ده .په دې مرحله کې لرغونپوه څېړونکی د لرغوني محل په
هکله افاقي معلومات راټولوي، دبېلګې په توګه لرغونپوه تر څېړنې
لاندې سیمې په اړه د هغې سیمې نوم ،جغرافیایي موقعیت،تاریخي
سابقه او له نږدې اوسېدونکو څخه د شفاهي معلوماتو لاس ته راوړلو
لپاره هڅې تر سره کوي [ددې اثر یو څپرکی همدې مسالې ته ځانګړی
شوی دی ]
د زمانې په تېرېدو سره د تاریخي او لرغونو سیمو نومونه د بېلابېلو
پېښو په نتیجه کې بدلون پیدا کوي او بدلېږي د بېلګې په توګه د
بدخشان ولایت یوه ولسوالۍ چې د کوشاني امپراتورۍ په وخت کې یې
مهم ستراتیژیك او اداري رول لوبولی دی د [لاشی] په نوم یادېدله ،کله
چې د اعرابو لښکر دا پراخه زراعتي سیمه تر خپل تصرف لاندې
راوستله هغې ته یې د بهارستان نوم ورکړ .خو کله چې ددې سیمې
اوسېدونکو د مغولي جګړماړانو پر وړاندې مقاومت وکړ وروسته له
هغه چې د سیمې کور کلي وران شول او بیا مغولي واکمنانو خپل
حاکمیت پر همدې سیمه پیل کړ اودې سیمې ته یې د تغیر په نیت د
بهارك نوم ورکړ چې په دې ترتیب د کوشاني دورې لاشی داعرابو د
زماني بهارستان دمغولو په دوره کې د بهارك په نوم یاد شو چې اوس
هم د بدخشان ولایت په اداري تشکیلاتو کې د بهارك په نوم یوه
ولسوالۍ وجود لري [۱۶ :۸۴ ] .
د لرغونپوهانو تر څېړنو لاندې سیمو په اړه چې کله جغرافیایي
،تاریخي،او شفاهي معلومات په مکمله توګه تر لاسه شي د لرغوني

محل لومړی سروې پیلېږي لومړی له محل [ Site ] څخه یوه مکمله نقشه ترتیب او ترسیمېږي او د موقعیت ټاکلي حدودیې په واضحه توګه څرګندېږي او په دې ترتیب لرغونپوه څېړونکی د څېړنې دویمې مرحلې ته چې د تشریح په نوم یادېږي زمینه برابروي. د تشریح [ Description ] په مرحله کې لرغونپوه څېړونکی هڅه کوي چې له لرغوني محل څخه لاس ته راغلي اثار [هغه اثار چې د ابتدايي سروې په نتیجه کې لاس ته راغلي ] د زمان، مکان او شکل له مخې تنظیم او تصنیف کړي په دې مانا چې لاس ته راغلي اثار له کومې کلتوري طبقې څخه تر لاسه شوي دي دا کلتوري طبقه په زماني لحاظ کومې دورې پورې اړه لري او کوم زماني رمز یا علامه په دې اثر کې برملا ښکاري او په دې ډول د زمان په اړه نورې پوښتنې باید ځواب ومومي وروسته د لاس ته راغلي اثر د مکان او موقعیت په اړه دقیق معلومات راټولېږي په دې ډول چې لاس ته راغلی اثر د کلتوري طبقې په کومه برخه کې واقع دی او یایې د کلتوري طبقې له نورو اثارو سره د موقعیت کوم نسبت درلود ایا په یوه لوړ ځای کې واقع و او که په یوه لرې برخه کې د نورو اثارو په منځ کې و او که یوازې په یوه ګوښه کې پروت و ؟ او په دې ترتیب د مکان په اړه نورې پوښتنې باید ځواب شي [زیاتره د لرغونې اثر ارزښت او مقام د هغه له مکان او موقعیت څخه برملا کېږي ]لرغونپوهان هڅه کوي چې د لرغوني شي یا اثر د موقعیت په اړه پوره دقت وکړي ځکه د عملي کار [سپړنو ] په جریان کې له جودیزیکي وسایلو څخه په پوره پاملرنې سره کار اخلي [د ساحوي څېړنو په برخه کې به په پوره تفصیل پر دې مساله بحث وشي.

د تشریح د مرحلې ورستی منظم فعالیت د کشف شویو اثارو د ټیپ او شکل په هکله د معلوماتو یو ځای کول دي. لرغونپوه څېړونکی تلاش کوي چې د لاس ته راغلي اثر شکل او ټیپ تعین کړي په دې مانا چې لاس ته راغلی شی څه شکل لري ؟ د کوم تکاملي حالت نمایندګي

کوي ؟ کوم عيني تحولات او تغيرات په نوموړي شي کې ځرګند او برملا دي ؟ دکومو اثارو سره ورته والی لري او له کومو اثارو څخه پرمخ تللی او له کومو اثارو څخه زور او پخوانی [ وروسته پاتې موډل ] ښکاري ؟ او په دې ترتيب نورې پوښتنې بايد ځواب شي.

لرغونپوهانو د خپل څېړنيز ميتود دريمه مرحله د توضيح يا [ Explanation] په نوم ياده کړې ده.

په دې مرحله کې لرغونپوه څېړونکی هڅه کوي چې د کشف شويو اثارو بېلابېل اړخونه تر څېړنې لاندې ونيسي ] په دې مرحله کې لرغونپوه څېړونکی هڅه کوي چې د کشف شويو اثارو بېلابېل اړخونه تر څېړنې لاندې ونيسي د توضيح مرحله څلور غوره اړخونه لري، دهغو د دقيقې او هراړخيزې څېړنې په نتيجه کې پوره ډاډمن معلومات تر لاسه کېدلای شي، تر هر څه وړاندې د کشف شويو اثارو سياقي اړخ [ Contcktual ]تر څېړنې لاندې نيول کېږي په دې مانا چې د تر لاسه شوي اثر اصل او بنياد په څه ډول دی او په کومې سيمې پورې اړه لري وروسته د اثر علمي [ Functional ] اړخ تر مطالعې لاندې نيول کېږي په دې ډول چې نوموړی اثر د څه شي لپاره کارول شوی دی او په کومو موارد و کې کارول کېده د استعمال يو مورد يې درلود او که په بېلابېلو موارد و کې کارول کېده او داسې نورې پوښتنې بايد ځواب شي. د توضيح د مرحلې دريمه جنبه يا اړخ د اثر ساختماني اړخ [ [Structural دی په دې مانا چې بايد ځرګنده شي دا اثر په کومه طريقه جوړ شوی دی له کومو موادو څخه استفاده شوې چې دا اثر جوړ شوی او بالاخره د دې مرحلې وروستۍ جنبه د سلوکي [ Behavioral ] اړخ څېړنه ده په دې برخه کې د اثر کلتوري او سلوکي اړخ تر څېړنې لاندې نيول کېږي په دې مانا چې بايد ځرګنده شي اثر د کوم سلوك او کلتور استازيتوب کوي او يا په خپله اثر کې د کلتور کومه بېلګه شته او داسې نورې پوښتنې. [۴۶:۹-۴۹ ]

په هر ډول له یادشویو مطالبو څخه په ډاګه کېږي چې د تاریخ علم او دلرغونپوهنې د اهدافو تر منځ ورته والی شته خو ددې دوو علمي څانګو د څېړنې میتودونه او تحقیقي طریقې یو له بل څخه متفاوتې او بېلې دي. ددې تر څنګ د تاریخ له علم د څېړنې ساحه او د لرغونپوهنې علم د څېړنې ساحه هم عمدتا متفاوته او بېله ده. د تاریخ علم د بشري تاریخ هغه برخه څېړي چې لیکني او خطي اسناد وجود ولري په داسې حال کې چې لرغونپوهنه د بشري تاریخ هغه برخه څېړي چې انسان د ځمکې پر مخ ژوند پیل کړی او بیا د لومړنیو مدنیتونو تر غوړېدو پورې زماني واټن تر څېړنې لاندې نیسي .یا په بل عبارت د لرغونپوهنې څېړنې د انساني ژوند له پیل څخه بیا تر هغه وخته چې لیکنې او خطي اسناد د پېښو د پوره روښانه کېدلو توان پیدا کوي تر مطالعې لاندې

نیسي.

لرغونپوهان د څېړنې په جريان کې خپل هدف ته د رسېدو په منظورد يو شمېر ټولنيزو او طبيعي علومو مرستې ته اړتيا لري په ځينو مواردو کې لرغونپوهنه له نورو علومو سره مرسته کوي او په ځينو مواردو کې له نورو علومو څخه مرسته غواړي .يا په بله مانا د لرغونپوهنې او نورو علومو تر منځ اړيکي يا يو جهته او يا هم متقابلې دي، په دې برخه کې د لرغونپوهنې او يو شمېر علومو تر منځ اړيکي تر مطالعې لاندې نيسو چې څرګنده شي لرغونپوهنه په کومو مواردو کې له نورو علومو څخه مرسته غواړي او په کومو مواردو کې نورو علومو سره مرسته کوي

ب: د لرغونپوهنې او نورو علومو تر منځ اړيکي :

۱ ـ لرغونپوهنه او سکه پوهنه (Nomis Mathic)

سکه پوهنه د ټولنيزو علومو له ډلې څخه ډېر نوی دسپلين دی چې د هدف او موضوع له مخې يې په ډېره لږه موده کې زيات ارزښت موندلی دی .ددې علم په وسيله کولای شو چې د بېلابېلو مسکوکاتو هراړخيزه

شوي څرګنده شوې چې ددې دورې مسکوکات په زياته پيمانه له طلا څخه په دايروي ډول جوړې شوي دي منځنی وزن يې [۱۲۲] ګرينه او اندازه يې [۸، ۱۰] انچه تثبيت شوي دي [۲۹: ۱۲۱]

د کنشکا ددورې دا مسکوکات چې د علمي سپړنو [حفريات] په جريان کې لاس ته راغلي داسې ښکاري چې د سکې پر مخ کنشکا له يوې نېزې سره حك شوی دی. په کوشاني مسکوکاتو خاصتا کنشکا د دورې په ټولو مسکوکاتو کې نېزه په يوه يا بل ډول تر سترګو کېږي. د نېزې موجوديت چې په زياتو پخوانيو مروجو سکو کې ليدل کېږي ځان ته مفهوم او افاده لري پخواني روميانو نېزه پر دې سربيره چې يوه مقدسه وسيله يې بلله هغه يې د عظمت او شوکت سمبول هم ګڼله

هندو شاهانو [هندو ساکي] په خپلو مسکوکاتو کې د نېزې علامه د جګړې د يوازې موثرې وسيلې په توګه منلې او هغه يې د خپلو مسکوکاتو پر مخ حك کوله، خو د کوشاني شاهانو په ځانګړې توګه د کنشکا د مسکوکاتو پر مخ د نېزې حك کېدل له يوې تاريخي پېښې سره اړوند بلل شوې ده.

نامتو مورخ علامه ابوريحان البېروني د کنشکا د نېزې په اړه په خپل اثر تحقيق اللهند کې ليکي : کله چې کنك پاچا ته د قنوج واکمن تحفه ورسېدله او ورته وړاندې شوله کنك پاچا د تحفې په ليدلو سره عصبي او په غضب شو د کنك د قهر علت دا و چې د تحفې پر سر د لاس د علامې پر ځای د پښې علامه موجوده وه په همدې علت يې د قنوج واکمن له منځه وړلو نيت وکړ لښکريې ترتيب او د قنوج پر لوري يې حرکت وکړ د قنوج واکمن له دې خبرې سره وارخطا او لاره چاره يې ورکه کړه خو د قنوج د واکمن يوه هوښيار وزير د کنك افراد داسې دښتې ته وهڅول چې ډېره پراخه او له اوبو څخه خالي وه په دې وخت کې چې د کنك لښکر د پراخې دښتې يوې او بلې خوا ته منډې وکړې ستړي او ستومانه شول او ټول له تندې څخه له حرکته ولوېدل په داسې حال کې

چې لښکرېږي مرګ سره مخامخ و کنك پاچا خپله نېزه په هماغه دښته کې پر ځمکه ووهله او له هماغه ځايه اوبو فواري داري وکړې او لښکريان د تندې له مصيبت څخه وژغورل شول [۲۹: ۱۲۲]

په دې ترتيب داسې ښکاري چې کنشکا په خپلو تابع سيمو کې د نظامي اقتدار تر څنګ روحي تفوق هم درلود له يفتلي شاهانو څخه راپاتې شوي مسکوکات چې د علمي سپړنو په وسيله تر لاسه شوي او يا په ناڅاپي توګه د عامو خلکو په وسيله لاس ته راغلي غالباله نقرې څخه جوړې شوې سکې دي چې د چلند او راکړې ورکړې ارزښت يې درلود، د يو شمېر پوهانو په عقيده د يفتلي شاهانو مسکوکات په عمده توګه د ساساني شاهانو په ضرابخانو کې جوړېدلې او يفتلي شاهانو د علامو او مشخصو په حك کولو به يفتلي شاهانو ته ورکول کېدې. هيون تسنګ چيني زاير يفتلي پاچا په درباري کېږدۍ کې ليدلی چې د طلا پر مېز ناست او د ځلوېښتو ملکونو تحفې او ماليات يې منل [۲۹: ۱۲۶]

په دې ترتيب لرغونپوهان د سکه پوهنې علم له اساساتو سره بلدتيا ته اړ دي چې د مسکوکاتو د خصوصياتو ،ساختمان ،نوعيت ،ارزښت او داسې نورو اړوندو ذاتي مسايلو له مطالعې څخه معينې او ټاکلې نتيجې تر لاسه کړي او يا دا چې د سکه پوهنې څانګې د پوهانو هغه نتيجې چې له لرغونو مسکوکاتو څخه يې تر لاسه کړي په خپل واك کې ولري چې وکړای شي د څېړنې په لار کې د پرابلمونو د حل لپاره وکارول شي او په دې ډول د لرغونو اثارو تر څنګ له مسکوکاتو څخه هم د يوه شاهد په توګه د خپلې ادعا د ثبوت لپاره کار واخلي خو هغه مطلب چې د يادولو اړتيا يې بيابيا شته هغه دا دی چې د مسکوکاتو څېړنه د مسکوکاتو د علمي څانګې نومسماتيك دنده ده يوازې د سکې پوهنې د علم په مرسته کېدی شي د مسکوکاتو هراړخيزه مطالعه تر سره شي او لاس ته راغلې نتيجې يې د لرغونپوهانو د لارې مل وګرځي.

۲ ـ د لرغونپوهنې او انسانپوهنې [ Anthropology] تر منځ اړيکې

پخوا تر دې چې ددې دوو ټولنيزو علومو تر منځ اړيکې وڅېړو لاژمه ده چې انسانپوهنه وپېژنو. د انسانپوهنې لاتيني اصطلاح { [Anthropology ] ده چې د دوو کلمو [ Anthrops] د انسان په مانا او [ Logos] د علم په مانا ترکيب شوې چې په دري ژبه کې ورته بشرشناسي او پښتو ژبه کې ورته د انسانپوهنې علم نوم کارول کېږي

د نولسمې پېړۍ تر لومړۍ نيمايي پورې د انسانپوهنې علم نوم پر ټولو هغو ټولنيزو علومو چې د انسان د څېړنې د يوه يا بل اړخ دنده يې درلودله اطلاق کېده وروسته وروسته د ټولنيزو علومو ترمنځ د بېلابېلو خپلواکو علمي څانګو منځ ته راتلل او د هغو وده ددې سبب شوه چې د انسانپوهنې لپاره هم تاکلی ځای پاتې شي او د يوه مستقل دسپلين په څېر مشخصه موضوع او د څېړنې خاصې لارې او ميتودونه د ځان لپاره ولټوي او وده ورکړي له هغه وروسته انسانپوهنه د يوه مستقل علم په څېر منځ ته راغلله او د نورو علومو منځ کې يې د حداو بريد ليکې څرګندې او د ارزښتمن دسپلين په څېر وپېژندل شوه.

لرغونپوهنه د ټولنيزو علومو هغه پوهه ده چې د انسان د پيدايښت څرنګوالی او د انسان د فزيکي خصوصياتو د ودې لوری څرګندوي ددې علم په وسيله کولای شو چې د انسان د پيدايښت زمينې وڅېړو او همدا شان کولای شو د انسان د فزيکي ودې لوری او د ودې لارېون بېلابېلې مرحلې له پخوانې انسان څخه بيا تر اوسني معاصر انسان هوموسپين [ Homosapien] پورې تر

څېړنې لاندې ونيسو، د انسان پوهنې دې اړخ تـه د انسان فزيکي پوهنې [Physiccal Anthropology] نوم هم ورکړل شوی دی.
دا چې لومړی ژوندی موجود څنګه منځتـه راغـی ؟ پـه کومو شرايطو کې بې ساه ماده پر ژوندي موجود واوښتله ؟ نوې ژوندی مادې څنګه د خپلې ودې لارې ووهلې ؟ او پـه پـای کې د انسان د ظهور او د ودې بېلابېلې مرحلې څنګه ترسره شوې دي ؟او داسې نورې پوښتنې د انسانپوهنې په محدوده کې مطرح کېدلای شي پـه دې ترتيب د منطقي ځوابونو د تر لاسه کولو لپاره همـدا انسانپوهنه مرستندوی ګرځي.
انسانپوهنه ديـوه خپلواکـه دسـپلين پـه څېړ د څېړنې خپـل ميتودونه لري او له هغو څخه د کار اخستلو پر بنياد مطرح شويو پوښتنو ته ځوابونه مومي. د انسانپوهنې او يو شمېر طبيعي علومو ترمنځ په ځينو مواردو کې ورتـه والی ليدل کېږي پـه ځينو مواردو کې هغـه لابراتوارونـه او وسايل چې د طبيعي علومو لپاره کـارول کېږي انسانپوهنه هم خپلو اهدافو تـه د رسېدلو پـه لار کې همـدې لابراتوارونو او تخنيکي وسايلو څخه کار اخلي خو هغـه اړتيا چې ددې علم څېړونکي يې لري هغـه يوازې د لرغونپوهانو پـه وسيله لرې کېدی شي دا څرګنده خبره ده چې لرغونپوهان د خپلو څېړنو په لار کې داسې اثار او توکي لاس تـه راوړي چې د هغـو تحليل او مطالعه يوازې د انسانپوهنې په وسيله ممکنه ده او په عين حال کې دا توکي د انسانپوهنې د موضوع بنيادي مـواد دي چې بـايد انسانپوهان هغه په خپل واك كې ولري يا په بله مانا د انسانپوهنې لپاره اومه مواد د لرغونپوهانو له خوا کشف او رابرسېره کېږي
لرغونپوهان د ځينو لرغونو سيمو څخه لـه پخوانيو انسانانو پاتې شونې او فوسيلونه لاس ته راوړي، ددې اثارو پېژندنه يوازې د

انسانپوهنې په وسیله ممکنه ده له یوې خوا د لرغونپوهانو له خوا کشف شوي اثار د انسانپوهانو لپاره د هغه علم اصلي مواد او توکي دي او له بلې خوا د انسانپوهانو په مرسته د کشف شویو اثارو بیان او توضیح د لرغونپوهانو اصلي ستونزه حلوي په دې ترتیب ددې دوو علمي څانګو تر منځ د پرله پسې او ضروري اړیکو چې ورته متقابل اړیکي ویلای شو شتون څرګند او لازمي دی چې لرغونپوهان د انسانپوهانو د کار اومه مواد برابر کړي او انسانپوهان د لرغونپوهانو په وسیله کشف شوي اثار ارزیابي، تحلیل او وپېژني.

هالېنډي لرغونپوه [ Dubois ] پر [ ۱۸۹۱ ] کال په جاوا کې علمي څېړنې تر سره کړې، ددې څېړنو په جریان کې یې د یوه پخواني انسان د سر کوپړۍ[ جمجمه ] تر لاسه کړې، وروسته له هغه چې د انسانپوهنې د پوهانو له خوا نوموړې جمجمه مطالعه او وڅېړل شوه څرګنده شوه چې دا جمجمه یا د سر کوپړۍ د هوموسپین [ Homo Sapien ] انسان نه، بلکې له هغه نه د پخواني انسان یوه جمجمه ده چې بیا یې د سینانتروپ [ Sinan thropus ] یا د پیکن انسان په نوم یاد کړ. ددې تر څنګ انسانپوهانو د خپلو څېړنو په جریان کې دا هم څرګنده کړه چې نوموړی انسان له خپلې ټولنې یا ډلې سره په اشاره یې ژبه خبرې کړې دي یا په بله مانا د سینانتروپ انسان ډلو په خپل منځ کې د افهام او تفهیم کلمات یا ژبه نه درلوده فقط د اشارو په وسیله یې د خپل منځي مسایلو حل او فصل تر سره کاوه [۵:۱۶ ] الماني لرغونپوهانو د نیاندر نومي دره کې د یوه پخواني انسان فوسیل تر لاسه کړ چې هغه وروسته د نیاندرتال [Neander taler] په نوم مسما شو انسانپوهانو څرګنده کړه چې له [ ۱۲۵۰۰۰ ] کاله څخه

بیا تر [ ۱۳۵۰۰۰ ] کاله پخوا د انساني ډلو دا بېلګه د لویدیزې اروپا په زیاتو سیمو کې اوسېدله، د ښکار په وسیله یې ژوند کاوه چې د موسترین مرحلې د انساني خوراك څرګندونه نمونه ده. د انسانپوهانو څېړنو څرګنده کړه چې نیاندرتال د اوسني معاصر انسان په شان څېره او کړه وړه درلودل خو لایې د خپلې ودې هغه پړاو نه وو پوره کړی کوم چې اوسني معاصر انسان پوره کړی دی، په دې ترتیب نیاندرتال د لرغونو او معاصرو انسانانو تر منځ د وصل کړی جوړه کړې ده [۳۴: ۲۲۰ ]

امریکایي لرغونپوه کارلتون .س.کون د پنسلوانیا پوهنتون استاد د افغانستان د بدخشان ولایت د کوردرې په سپړنو او څېړنو کې د پخواني انسان داسې یو فوسیل تر لاسه کړ چې د فزیکي جوړښت له مخې د فلسطین له کارامیل انسان سره ورته والی لري، د پنسلوانیا پوهنتون څېړنو وښودله چې له کوردرې څخه تر لاسه شوي فوسیل له هغه ډلې انسانانو څخه دی چې لاهوموسپین مرحلې ته نه و رسېدلی خو د فزیکي جوړښت له مخې له نیاندرتال انسان څخه څه نا څه پر مختللی او د ودې یو بېل پړاو څرګند وي [ ۱۳۶:۲۸]

له یاد شویو بېلګو څخه جوتېږي چې د لرغونپوهنې او انسانپوهنې تر منځ اړیکې دوه اړخیزه اړیکې دي له یوې خوا لرغونپوهان د خپلو سپړنو [ Excavation ] په جریان کې د پخوانیو انسانانو فوسیلونه او هډوکي تر لاسه کوي او هغه په خپل وار د انسانپوهنې لپاره د څېړنې او تحقیق اومه مواد دي هغه وخت چې د انسانپوهنې څېړنې د پخوانیو انسانانو په پاتې شویو فوسیلونوتر سره شي په طبیعي ډول د څېړنو نتیجې د لرغونپوهانو لپاره د زیات ارزښت وړ ګرځي دا ځکه چې انسانپوهان د فوسیل

هراړخيزه څېړنه کوي اود هغه د تکامل او ودې حالت تاکي او څرګندوي ترڅو له دې نتيجې څخه لرغونپوهان هم اغيزمنه ګټه واخلي.

۳ _ د لرغونپوهنې او ځمکې پوهنې [Geology ] تر منځ اړيکې :

ځمکپوهنه څه شی ده ؟ ددې پوهې د مطالعې اساسي مواد کوم دي ؟ اودکومو پرابلمونو د حل لاره پرانيزي ؟ دا هغه پوښتنې دي چې ددې علم په تعريف او محتوا کې يې حل تر لاسه کولای شو ځمکه پوهنه چې په دري ژبه کې ورته زمين شناسي وايي د دوو لاتينو کلمو [Geos ] د ځمکې او [Logos ] د علم يا پوهې په مانا ترکيب شوې چې اوس اوس د جيولوجي [Geology] په نوم مسما شوې ده، ځمکپوهنه هغه علم دی چې د ځمکې بېلابېل قشرونه د بنه پوهېدو په نيت تر څېړنې لاندې نيسي، د ځمکې پوهنې د اساسي مباحثو څخه يو هم د ځمکې د پورتني پوښ[قشر بيروني ] هراړخيزه څېړنه ده، د ځمکې پوښ څنګه جوړ شوی ؟ له کومو موادو څخه ترکيب شوی ؟ د معادنو او د ځمکې د پورتني پوښ په منځ کې د پرتو منرالونو خصوصيات څه دي ؟ او داسې نورې پوښتنې ددې علم په دري ګونو څانګو کې يې حل موندلای شو چې عبارت دي له : د ځمکې د تشکيل او تغير په لړۍ د پوهېدلو څانګه ! د ځمکې د متشکله موادو پېژندلو څانګه ! د ځمکې د جوړښت د تاريخي بهيرپوهنې څانګه! د همدې درې ګونو څانګو په وسيله ځمکپوهنه له خپلو مينه والو سره مرسته کوي [۱۵ :۳ ]

ځمکپوهنه د ځمکې د پيدايښت ، شکل ، او د ځمکې پر مخ او يا دننه کې د موادو ترکيب او څرنګوالی تر مطالعې لاندې نيسي او لرغونپوهنه د لومړني انسان له پيدايښت څخه بيا تر معاصر انسان پورې کلتوري مرحلې تر څېړنې لاندې نيسي په طبيعي توګه يو د

بل مرستې ته اړتیا لري. اساساً لرغونپوهان د ځمکپوهنې علم د پوهانو له څېړنیزو نتیجو څخه ګټه اخلي په دې مانا چې په زیاتو مواردو کې لرغونپوهان له داسې پرابلمونو سره مخامخ کېږي چې د ځمکپوهنې په مرسته یې حل ممکن او عملي کیدی شي په ځینو مواردو کې که چېرې د ځمکپوهنې مرسته له لرغونپوهنې سره نه وي کیدی شي چې یا هېڅ حقیقت ته لاره ونه موندل شي او یا هم حقیقت نیمګړی پاته شي.

دا چې لومړنیو انساني ټولنو د ځمکې په کومو سیمو کې خپل ګډ ژوند پیل کړی دی ؟ دا پوښتنه د جیولوجي په مرسته حلېدی شي په دې ډول چې د ځمکې تاریخ او د تشکل لوری باید دا څرګنده کړي چې کومې سیمې د پخوانیو انسانانو لپاره د اوسېدو مناسب ټاټوبي وو ؟ او کومو سیمو د اوسېدو مناسب امکانات درلودل ؟ او ددې تر څنګ یوازې جیولوجي کولای شي د هغو ډبرینو وسایلو په هکله رڼا واچوي کوم چې د پخوانیو انسانانو له خوا د کار د وسایلو په توګه کارول شوي دي په دې ډول د ځمکپوهنې پوهان له لرغونپوهانو سره د مرستې پراخې زمینې لري چې د اړیکو په نه لرلو سره د علمي څېړنو پایلې یا نا مطلوبې او یا هم نیمګړې تر لاسه کېږي، لرغونپوهان په خپل وار له جیولوجستانو سره په ځینو خاصو مواردو کې مرستندوی واقع کیدی شي د بېلګې په توګه د انسانانو له خوا د لومړي ځل لپاره له ځینو منرالونو او معدني موادو څخه ګټه اخستنه چې د لرغونپوهانو د سپړنو په نتیجه کې څرګندیږي د جیولوجستانو لپاره ډیو شمېر پوښتنو حل موندلای شي د بېلګې په توګه لومړنیو انسانانو له چقماقي ډبرو څخه وسایل جوړ کړي او کارولي دي ، او یا دا چې په مصر کې د لومړي ځل لپاره د مسو فلز شپږزره کاله

پخوا تر میلاد د هغه وخت انسانانو له خوا کارول شوي دي او داسې نور خو په عمده ډول د ځمکپوهنې ځانګه د لرغونپوهانو سره د زیاتو پرابلمونو په حل کې مرستندوی ګرځي د ځمکپوهنې ځانګې د مرستې موارد زیات دي خو دلته به د بېلګې په توګه ځینې موارد یاد کړو ماوریزیوتوزي جاپاني لرغونپوه په خپله یوه مقاله کې د [ په دریمه ق م زریزه کې دلاجوردو سوداګري کې ] داسې لیکي : کله چې هیرمن [ Herman ] د سومریانو په یوه پخوانۍ هدیره کې څېړنې تر سره کړې د نورو اثارو تر څنګ یې د لاجوردو غمي ډوله ډبرې هم تر لاسه کړې، وروسته جیولوجستانو د خپلو څېړنو په نتیجه کې څرګنده کړه چې نوموړې لاجوردي ډبرې د افغانستان څخه د سوداګرو له خوا راوړل شوي دي چې د یوې تجارتي متاع په توګه یې په مستعدو کورنیو پلورلي دي [ ۹۵:۲۷ ]

ځینې وختونه لرغونپوهان د خپلو څېړنو په جریان کې له زیاتو جدي پرابلمونو سره مخامخ کېږي د بېلګې په توګه ځینې لرغوني محلات په داسې سیمو کې واقع شوي چې په وروستي وخت کې نوموړې سیمه د انساني عادي ژوند امکانات نه لري خو کله چې لرغونپوهان سیمه تر څېړنې لاندې نیسي په ډاګه کېږي چې په نوموړې سیمه کې د بشري کلتور بقایاوې شته په داسې حال کې چې اوس په نوموړې سیمه کې د اوسېدو هېڅ ډول شرایط نه شته د بېلګې په توګه : کله چې مسیو کزل فرانسوي لرغونپوه د افغانستان د منډګیک په سیمه کې سپړنې تر سره کړې څرګنده شوه چې په دې سیمه کې څه نا څه درې سوه کاله پخوا تر میلاده انساني ټولنو ژوند کړی دی او له ځان څخه یې داسې اثار پرې ښي چې د یوه مستقل او پرمختللي کلتور نمایندګي کوي، په داسې حال کې

چې د منډګېك اوسنۍ سيمه داسې موقعيت لري چې د هېڅ راز کروندګرۍ وړ شرايطو څخه برخمنه نه ده، زراعت او کروندګرۍ لپاره تر ټولو اساسي فکتور د پراخو اوبو شته والی دی په داسې حال کې چې د منډګېك سيمه دا امکان نه لري په همدې وخت کې جيولوجستانو د لرغونپوهانو مرستې ته راودانګل او د مسالې حل يې د خپلو څېړنو په ترڅ کې پيدا کړ هغه دا چې جيولوجستانو څرګنده کړه چې د هلمند سيند د نورو يخچالي سيندونو په څېر خپله بستره تخريبوي اوله ژورو يې دا څرګنده شوه چې له څه نا څه پنځه سوه شاوخوا کالو په جريان کې د هلمند سيند په خپل بستر کې کښېنستلی [ ژورو ] او اوس د اوبو د راپورته کېدو امکانات نه لري

۴ _د لرغونپوهنې او کلتورپوهنې [Ethnography] تر منځ اړيکې

د اتنوګرافي اصطلاح له دوو يوناني کلمو څخه چې [ Ethnos ] د خلکو او [ Graphy ] د ليکنې پر ماناڅخه ترکيب شوې ده په دري ژبه کې ورته مردم نګاري يا مردم شناسي وايي په ځينو هېوادونو کې د اتنوګرافۍ اصطلاح په عوض د اتنولوجۍ [ Ethnology ] اصطلاح کارول کېږي چې عين افاده او مانا لري.

اتنوګرافي هغه علم دی چې د انساني ټولنو [ مادي او معنوي ] فرهنګ او کلتورڅېړي هغه وخت چې نوموړی علم د خپل پيدا ښت او ودې په لومړيو مرحلو کې وو داسې تصور موجود و چې ښايي ددې علم لپاره د څېړنې خاصه موضوع پاتې نه وي، په دې مانا چې ددې علم په وسيله تر ټولو وړې او کوچنۍ ټولنې تر بحث لاندې نيول کېږي يوه داسې زمانه به وي چې نورې داسې ټولنې چې څېړنه

دې پرې نه وي تر سره شوي پاتې نه وي په داسې حال کې چې اوس
اوس د اتنوګرافۍ د مطالعې ساحه نه ېوازې دا چې محدوده نه ده
بلکې یوه پراخه او هرا ړخیزه ساحه لري، دشمېر له مخې دکوچنیو
او نویو ټولنو مطالعه او څېړنه پر مخ بیایي، په دې ترتیب کولای
شو د اتنوګرافي لاندې تعریف چې ددې علم له محتوا سره سمون
خوري بیان کړو. اتنوګرافي هغه علم دی چې د ټولنو تر منځ
فرهنګي ورته والی او توپیرونه تر مطالعې لاندې نیسي بې له دې
چې د مطرحو ټولنو شمېر او وده په نظر کې ولري [ ۱۰:۱۲ ]
لرغونپوهان د خپلو علمي څېړنو په جریان کې له داسې اثارو او
لرغونو توکو سره مخامخېږي چې د هغو تفسیر او تغیر او له
نوموړو اثارو څخه د منطقي نتیجې لاس ته راوړل د اتنوګرافۍ د
علم له مرستې پرته ممکنه نه ده او یا دا چې په نوموړو اثارو پوره
پوهېدل به نیمګړي وي.
انساني چاپېریال د ډول ډول پدیدو په وسیله متاثره کېږي په
ځینو مواردو کې دا تاثیر د مخامخ او مستقیم ارزښت په توګه
څرګندېږي او په ځینو مواردو کې مخامخ او مستقیم تاثیرات نه،
بلکې د معنوي او مادي اړیکو په وسیله څرګندېږي د بېلګې په
توګه انساني چاپېریال له هغو مادي پدیدو څخه چې په مخامخ [
مستقیم ] ډول اوپه ډاګه متاثر کېږي هغه د انساني ژوند په تولیدي
او عیني برخو کې د اثارو شته والی دی لکه د کار وسایل ، د
اوسېدو ځای ، غذایي مواد ، طبیعي او جغرافیایي حالت او
نوردي، ددې تر څنګ داسې پدیدې هم په انساني چاپېریال کې
راڅرګندېږي چې د انسان او ټولنې په لومړني ضرورتونوکې نه
شمېرل کېږي خو دانسان چاپېریال متاثره کوي لکه

عقیده، عنعنه، ټولنیزه تاکلې رابطه او نور. لرغونپوهان کله نا کله دداسې اثارو په کشف بریالي کېږي چې اتنوګرافیکي څېړنې او تفسیر ته اړتیا لري او اتنوګرافران له خپلو خاصو علمي تګلارو څخه په کار اخستلو منطقي او ډاډمنې نتیجې تر لاسه کوي او د لرغونپوهانو په واك کې یې ورکوي. پر ۱۹۴۸ میلادي کال روسي لرغونپوه (مسان دانو) لرغونې سیمه چې د ازبکستان جمهوریت کې واقع ده تر څېړنې او سپړنې لاندې ونیوله، د نورو اثارو تر څنګ یو لوی نغری [ اتشدان ] هم کشف شو، ددې نغري د تفسیر او توضیح لپاره د اتنوګرافي علم مرسته ضروري وه چې لرغونپوهان پوه شي نوموړی نغری د څه شي لپاره کارېده؟ اتنوګرافرانو د خپلو څېړنو په نتیجه کې اعلان وکړ چې دا په مرکزي برخه کې ددې لوی نغري شته والی د هغو اوسېدونکو له خواد مرکزي او جمعي عبادت ځای په توګه کارول شوی دي، په دې مانا چې دانو اوسېدونکي د نغري په چارچاپېر درېدل او عبادت یې تر سره کاوه [۱۸: ۹۲ ]

لرغونپوهان د خپلو څېړنواوهدف ته درسیدو لپاره خاص علمي میتودونه کاروي هغه لرغونې اثار چې د سپړنو په نتیجه کې لاس ته راوړي د هغو اثارو هراړخیزې څېړنې لپاره د نورو علومو په څېر د مشاهدې ،تشریح او توضیح مراحل یو په بل پسې تطبیق او عملي کوي هغه وخت چې د شاهدې او تشریح مراحل د لرغونو اثارو د ارزیابۍ او تحلیل په اړه پای ته ورسېږي بیا نو د توضیح مرحله پیلېږي، د توضیح په مرحله کې د تر څېړنې لاندې اثر څلور اړخونه لکه سیاقي ،سلوکي ،عملي او ساختماني مطالعه کېږي چې په دې څلورو اړخونو کې یو هم د اثر یا شي د سلوکي اړخ

ده، په دې مانا چې تر ځېړنې لاندې اثر د سلوك او کلتوري خوا ځرګندتيا بايد تر سره شي.

د توضيح په سلوکي مطالعه کې د لرغوني شي فرهنګي اړخ راځرګندېږي په دې مانا چې د پخوانيو انسانانو او يا انساني ټولنو د سلوك کوم راز ددې اثر څخه تر لاسه کېدلای شي کله نا کله داسې اثار تر لاسه کېږي چې دوه اړخيزه څېړه لري د بېلګې په توګه له هغه يوه زاړه کودري [ توته ظرف سفالي ] څخه چې تر لاسه شوي کېدی شي يو مانا او تفسير يې دا وي چې دا کودړې د ورځنۍ کارونې لپاره اوعادي ظروف و او شايي دا مانا هم ورکړي چې دا کودړی د ځينو خاصو مذهبي مراسمو په ترڅ کې کارول کېده، د همدې ستونزې د حل لپاره له لرغونپوهانو سره د اتنوګرافرانو مرسته ضروري او حتمي ده .

لنډه دا چې لرغونپوهنه د يوه خپلواك دسپلين په توګه له نورو ټولنيزو او طبيعي علومو سره اړيکي لري له ځينو علومو سره دا اړيکي يو اړخيز اوله ځينو علومو سره دوه اړخيز دي له دې ټول بحث څخه لږ تر لږه دوه لنډې نتيجې تر لاسه کولای شو، ټول علوم چې تر اوسه په خپلواك هويت معرفي شوي، يو له بل سره يو اړخيزه يا دوه اړخيز اړيکي لري دويم دا چې د علومو تر منځ د يو ټاکلي مرز [ سرحد ] مطلقيت نه شي کېدلای علوم يو او بل ته د هدف تر لاسه کولو په نيت اړتيا لري، دا اړتيا کله د نيمګړتيا د لرې کولو په ډول تبارز کوي او کله کله د يوه پرابلم د کلي حل ضروري برخه ګرځي، د علومو په منځ کې د څېړنيزو ميتودونو ورته والی او توپيرونه د هغه علومو په موضوع او هدف پورې اړه لري که د علومو تر منځ هدف او موضوع يو له بل سره ورته وي بيا يې کړنلارې هم يو او بل ته نږدې ځرګندېږي او پرعکس که يې موضوع ورته والی ونه لري بيا نو د ميتود، توپير هم روښانه او په ډاګه کېږي.

# دویم څپرکی

## د لرغونپوهانو ساحوي څېړنې

د لرغونپوهانو له نظره لرغونپوهنه له دریو بنیادي څانګو څخه جوړه شوې ده لومړۍ څانګه یې د ساحوي لرغونپوهنې یا [Fieldwork Areheology ] دویمه څانګه یې د لابراتواري لرغونپوهنه یا [Laboratoial Archerlogy ] او دریمه څانګه یې د شعبوي لرغونپوهنې یا [ChairArcheology ] په نومونو یادې کړې دي. هغه ډله لرغونپوهان چې خپله دنده په سیمه او ساحه کې تر سره کوي د ساحوي لرغونپوهنې دندې پر مخ بیایي چې د نورو څانګو لپاره د څېړنې د اومو موادو د راټولولو او لاس ته راوړلو هڅې دي دا ډله پوهان سربېره پردې چې د خپلې څانګې پر ټولو میتودونو او اصولو پوره برلاسي لري د نورو دووڅانګو پر اساساتو او بنیادي مسایلو هم باید پوه او لازمه خبرتیا ولري دا ځکه چې د لرغونپوهنې درې واړه څانګې یوبل سره نه پرېکېدونکې اړیکې لري او یا په بله مانا یودبل تکمیلوونکې برخې دي، له دې څانګو څخه د یوې څانګې د څېړونکې تېروتنه د ټولو څانګو د څېړونکو د کار په نتیجه کې منفي تاثیر ښندي، خو د ساحوي لرغونپوهنې څانګې د څېړونکې تېروتنه هغه نه جبرانېدونکې خطا بلل کېږي چې ددې علم دوه نورې څانګې هم په کلي ډول نا سمې لارې ته برابروي په دې ترتیب د ساحوي لرغونپوهنې پوهان او څېړونکې باید په پوره او کامل دقت سره خپلې دندې د خپلو علمي موازینو په مراعات سره تر سره کړي.

**په علمي ډول د لرغونو سیمو سپړنه :**

لرغونپوهان د خپلو څېړنو زیاته زمانه په لرغونو سیمو کې د علمي کیندنو او سپړنو په منظور په پرله پسې هڅو لګیا وي د لرغونپوهانو دا ډول علمي او عملي فعالیتونه د منظم پلان او علمي میتودونو په رڼا کې تر سره کېږي چې دا میتودونه د پر له پسې علمي تجربو محصول او لاس ته راوړنې دي .هغه ساحه یا حوزه چې لرغونپوهان یې د څېړنې او سپړنې لپاره ټاکي د سایټ [Site ] په نامه یادوي سایټ هغه ځای ته ویل کېږي چې لرغونپوهان یې د خپلو څېړنو لپاره د لرغونو اثارو د کشف او د لاس ته راوړلو په منظور ټاکې کېدی شي چې سایټ ډېره وړوه نقطه وي او هم کېدای شي چې ډېره پراخه سیمه راونغاړي د یوه لرغونپوه څېړونکي لپاره هغه علامه چې دیوه ښکاري انسان د خطا شوي غشي په وسیله دیوې بلې ډبرې پر مخ ایجاد شوي وي سایټ یا د سپړنو ځای په توګه ارزښتمن دي او هم کېدی شي دیوه پراخه لرغوني کلي او یا لرغونی ښار وران شوي کورونه او ماڼۍ سایټ وګرځي او د لرغونپوه لپاره د څېړنې محل او سیمه وشمېرل شي.

لرغونپوهان خپل هدف ته د رسېدو لپاره مادي منابع اود پخوانیو کلتورونو پاتې شویو اثارو ته اړتیا لري دهمدې اړتیا پر بنیاد هڅه کوي څو لرغوني سیمې تشخیص او د سپړلو پلان یې ترتیب کړي ددې پلانونو د تطبیق لپاره د لرغونپوهانو له خوا ټاکلې میتودونه او خاص روشونه عملي کیږي چې په دې برخه کې په زیات لنډیز د سپړنې د عملیاتو بهیر او د مشخصو میتودونو یادونه کوو.

**الف :دټاکل شوې سیمې په اړه د تاریخي معلوماتو راټولول :**

د ټاکل شویو سیمې په اړه تر هر څه وړاندې د لرغونپوه څېړونکي له

خوا د نوموړې سیمي یا ځای په هکله د تاریخي معلوماتو راټولول ضروري او حتمي دي په دې برخه کې لرغونپوه څېړونکی باید ځینې پوښتنې له ځان سره مطرح کړي او بیا د هغو د حل لپاره ځوابونه ولټوي د بېلګې په توګه څېړونکی باید وپوښتي چې په دې ټاکل شوې سیمه کې کومه تاریخي پېښه تر سره شوې ده ؟ یا دا چې دا سیمه د کومې تاریخي دورې په متنونو کې یاده شوې ده ؟ کومو مورخینو ددې سیمې یادونه کړې ده ؟ او په دې ترتیب نورې پوښتنې چې لرغونپوه څېړونکی یې باید ځواب ومومي خو تر ټولو ارزښتمنه پوښتنه دا ده چې ټاکل شوې سیمه اوس په څه نوم یادېږي او پخوا په کومو نومونو یاده شوې ده ؟ دنوم د بدلون عوامل یې څه وو ؟ په اوسني او پخواني نوم کې څه ورته والی او توپیرونه لیدل کېږي ؟ په دې برخه کې د څو لنډو بېلګو یادونه کوم.

د کوشاني پاچاهانو په زمانه کې د امو سیند پر غاړه یو مشهور ښار چې د تبادلې او راکړې ورکړې مرکز و د ( نومي ) په نامه یادېده نوموړی ښار د اعرابو تر لښکرکشۍ وروسته د ( قلعه احنف) په نامه یاد شو خو کله چې چنګېزي لښکر په دې سیمه کې واکمن شول د نوموړي ښار نوم یې( ینګي قعله ) کېښود چې همدا اوس هم د تخار ولایت یوه ولسوالۍ ده [۲۵:۱۱ ]

په ویدي سرودونو کې د [هراوتي ] په نوم یوه سیمه یاده شوې ده چې اوسنۍ جغرافیه پوهان یې د ارزګان ولایت د [دهراوت ] ولسوالۍ بولي یا پخوانی [کوبها ] چې اوسنی کابل ګڼل شوی پخوانی پوراشاپورا چې اوسنی پېښور ګڼل شوی، پخوانی ګندهارا چې اوسنی ننګرهار بلل شوی او داسې نور [۱۶:۳۸ ] په دې ترتیب د لرغونپوه څېړونکي لپاره د ټاکل شوې سیمې په اړه د تاریخي معلوماتو راټولول تر ټولو لومړی ارزښتمن کار دی.

## ب: د ټاکل شوې سیمې په اړه دجغرافیایي معلوماتو راټولول :

لرغونپوه څېړونکی باید د ټاکل شوې سیمې په هکله جغرافیایي معلومات هم تکمیل او بشپړ کړي، د سیمې په اړه بېلابېلو جغرافیایي پوښتنو ته ځوابونه ومومي د بېلګې په توګه نوموړې سیمه د طول البلد او

عرض البلد په کومو درجو کې واقع ده ؟ کوم هېواد او په کوم ولایت او ولسوالۍ پورې اړه لري ؟ په جیولوجیکي لحاظ یې جوړښت څنګه دی ؟ کوم طبیعي منابع او ذخایر لري ؟ د انساني ټولنو او انساني جمعیتونو د اوسېدو لپاره کوم امکانات او ظرفیتونه لري ؟ دا او په دا شان نورې پوښتنې چې د لرغونپوهانو له خوا د جغرافیایي معلوماتو د راټولولو تر عنوان لاندې څېړل کېږي د عصري حفریاتو یا سپړنو لپاره ارزښتمن مواد بلل شوي دي، په دې برخه کې د یوې بېلګې یادونه کوم کله چې امریکایي لرغونپوه کارلتون. س، کون د قره کمر او دره کور لرغونې سیمې وسپړلې څرګنده شوه چې د قره کمر سیمه د بحر له سطحې څخه لږترلږه [ ۲۳۰۰ ] فټه لوړه او د وادۍ له امواروسیمو څخه یې لوړوالی [ ۴۵۰ ] فټه وو، د کارلتون کون په عقیده، ددې سیمې په ټاکنه کې د پخوانیو انساني ډلو له خوا عمدتاً دوو فکتورونو نقش درلود. لومړی دا چې دا مناره د سیمې په لوړه ارتفاع کې واقع وه او د نورو وحشي خوړونکو او داړونکو حیواناتو له تعرض څخه نسبتاً خوندي وه دویم دا چې د نوموړې منارې څخه د وادي ټولې برخې او لاندې سیمې په پوره دقت څارل کېدل چې ددې څار په وجه یې د حیواناتو د ښکار کولو اسانتیا درلوده.

### ج : د ټاکل شوې سیمې په اړه د شفاهي معلوماتو راټولول :

وروسته له هغې چې لرغونپوه څېړونکی د ټاکلې شوې سیمې په اړه تاریخي او جغرافیایي معلومات بشپړ کړل باید د ټاکل شوې سیمې په اړه شفاهي معلومات د سیمې له نږدې اوسېدونکو څخه راټول او بشپړ کړي لرغونپوه څېړونکی په دې مرحله کې هڅه کوي چې هغه افواهات ، شایعات ، روایات او حکایات چې د لرغونې سیمې په اړه د سیمې نږدې اوسېدونکو په منځ کې وي راغونډ کړي، د شفاهي معلوماتو راټولول له څېړونکي سره په بېلابېلو مواردو کې مرستندوی ګرځي د بېلګې په توګه پخوا تر دې چې د طلا تپې لرغونې سیمه د لرغونپوهانو له خوا وسپړل شي د هغې سیمې نږدې اوسېدونکو ددې تپې په هکله په شفاهي شایعاتو او حکایاتو کې ویل چې په نوموړې غونډۍ کې طلایي اثار

ذخیره شوي دي او دا یوه ستره خزانه ده چې د لویو افغي ماړانو په وسیله ساتل کېږي، کله چې پروفیسور سریانیدي پر [۱۹۷۸-۱۹۷۹ ]میلادي کال د نوموړې تپې څېړنه او سپړنه تر سره کړه څرګنده شوه چې په رښتیا هم د طلا یوه خزانه موجوده وه له دې څېړونو څخه تر ۲۱۰۰۰ زیات طلایي اثار تر لاسه شول [۱۴: ۴۱ ]

په تاجکستان کې یوه لرغونې غونډۍ چې د [اجینه تپې ] په نوم یادېدله د نږدې کلیو اوسېدونکو ددې تپې په اړه شایعات او روایات درلودل چې دا غونډۍ د جن او پري ډوله موجوداتو مرکز دی خو کله چې سیمه تر څېړنې لاندې ونیول شوه څرګنده شوه چې د یوې سترې مجسمې چې اوږدوالی یې ۲۱ مترو ته رسېده او په پراته حال کې واقع وه یو شمېر نورې ډارونکې مجسمې هم موجودې وې او په دې ترتیب زیات نور مثالونه او بېلګې یادولای شو چې له لرغونپوه څېړونکي سره د معلوماتو د بشپړېدو په لار کې مرسته کوي.

## د: د ټاکل شوې سیمې په اړه د مادي معلوماتو راټولول :

لرغونپوهان د مادي معلوماتو د راټولولو په جریان کې اساسا درې لارې پر کار اچوي او یا په بله مانا د مادي معلوماتو د راغونډولو پروسه په درېو مرحلو کې تر سره کېږي. لومړی دا چې لرغونپوه څېړونکی هڅه کوي چې له لرغوني محل یا سیمې څخه چې د سپړلو لپاره ټاکل شوې ده هغه مادي اثار او علایم چې په تیت او پاشلې توګه یې د محل په بېلابېلو ځایونو کې ځای نیولی راغونډ او تصنیف کړي معمولا په لرغونو سیمو کې داسې اثار او منابع په پاشلې او تیت ډول موقعیت نیسي چې یا به د طبیعي عواملو لکه بارانونو ،سېلابونو ، او زلزلو په وسیله له خپل اصلي موقعیت څخه لرې شوي او په نامناسب حالت کې یې د محل په بل ځای کې واقع شوی وي او دا هم ممکنه ده چې دا ډول اثار د انسانانو په وسیله له خپل اصلي موقعیت څخه دیوه یا بل هدف لپاره او یا هم په نامریي ډول انسانانو له خپل اصلي ځایه څخه بې ځایه کړی وي، په هر ډول د سپړنو او څېړنو لپاره له ټاکل شوې سیمې څخه د مادي معلوماتو لومړۍ مرحله همدا د محل په، منځ او شاوخوا کې د تیتو پرتو لرغونو

اثارو مادي راټولول او غونډول دي.

د مادي معلوماتو د راغونډولو دويمه مرحله هغه علمي هڅې دي چې لرغونپوهان يې د لرغونو سيمو د سپړلو لپاره د علمي او منطقي نتيجو د حاصلولو په منظور تر سره کوي، پخوا تر دې چې له دې علمي فعاليتونو څخه لنډه يادونه وکړو لازمه ده چې له يو تعداد هغه وسايل چې لرغونپوهان يې ددې هڅو په جريان کې کاروي او ورڅخه ګټه اخلي فهرست کړو سره ددې چې ددې ډول وسايلو لست ترتيبول ساده کار دی خو د هغو استعمال او له هغو وسايلو څخه کار اخستنه د لرغونپوهانو لپاره د پاملرنې وړ خبره ده په دې برخه کې د يو شمېر هغو وسايلو يادونه کوم چې شته والی يې حتمي دی :

واتر پاش Waterpas{Instrument }

توډيليت Teudeliet

منزوله Manzoula

کي پريګل Kiprigel

پلانشيت Plaan shiet peper

ماتن پاش Maaten passe

د سپړلو ماشين Deopgravcn machien{rups kraan}

اوسپنيزې قطې Iezer baake

پلاستيکي پاکتونه Zaake

پلاستيکي پاکټونه Bake

د تصفيې ماشين [illegible] machine

تصفيه کونکی Zeef

درجه لرونکی خط کش Baak

د عکاسۍ ډوډول کمرې Camera

جنراتور Generator او نور تخنيکي لازم وسايل

**د کار وسايل :**

يوم، کلند، کراچۍ، تبر، تېشه، دستپتني [Troffel ] ډول ډول چاقوګان، برسونه، سوان، المونيومي مېخونه، او نور.

**د معیشت وسایل :**

دېګونه، کېلاسونه، کاسې، غوریګان، خېمې، کانتینرونه، المونیومي مېزونه، چوکۍ، او نور.

**د دفتر وسایل :**

کاغذ ، قلم، رنګ، پنسل، پنسل پاک، کاك کاغذ ، سریښ، اونور د سفري بکسونو تر څنګ د دوا او درملو مکمل ضروري اقلام اونور پر یادو شویو وسایلو سربیره د هرې سیمې او محل مطابق نور وسایل او اړتیاوې باید د لرغونپوه څېړونکي له خوا مشخص او اکمال شي.

تر ټولو ارزښتمنه خبره دا ده چې د ترانسپورت امکانات باید هرومرو ولري هغه څه چې د لرغونپوه څېړونکي د علمي هڅو ارزښت او اهمیت جوتوي هغه د لرغونې سیمې د سپړنې او څېړنې په اړه د سیمې حکومت او مرکزي دولت له خوا د اجازې شته والی دی، هېڅ ډول حفریات او سپړنې منطقي او علمي نتیجې نه شي تر لاسه کولی چې له لرغونپوه څېړونکي سره د سیمې او مرکزي حکومت قانوني اجازه نه وي یا په بله مانا سپړنې او څېړنې هغه وخت علمي نتیجه تر لاسه کولی شي چې د محلي حکومت او مرکزي دولت له خوا د سپړنې اجازه د څېړونکي په واك کې وي، ددې مسالې ارزښت په دې کې پروت دی چې علمي څېړنې باید د منظم پلان له مخې تر سره شي اوداسې پلان تطبیق یوازې د حکومت په اجازه ممکن دی، خو هغه حفریات چې په نا قانوني توګه تر سره کېږي هغه به څکه منطقي او علمي پایلې ونه لري چې د کارګرانو او څېړونکو د مصوئنیت احساس نه شي کېدلای په دې ترتیب د ارزښتمنو اثارو د ورانېدو او ورکېدو تر څنګ له لاس ته راغلو اثارو څخه د علمي منابعو په توګه د مربوطې فرهنګي دورې شاهدان نه شي ګڼل کېدی.

کله چې لرغونپوه څېړونکې د یوې ټاکلې سیمې د سپړنو تصمیم نیسي په هغه صورت کې د یوه نسبتاً مجهز لابراتوار چې د یوې انتقالي واسطې په وسیله له یوه ځایه بل ځای ته په هوسایۍ انتقال او ولېږدول شي شته والی ضروري برېښي ددې لابراتوار اړتیا په هغه صورت کې

لاړیاتېږي چې د لرغوني سیمې [ هغه چې په نظر کې نیول شوې وي] فاصله د ښار او صنعتي مرکز څخه په زیات واټن کې وي، په دې لابراتوار کې چې د عاجلو او فوري پرابلمونو د حل په منظور تهیه کېږي هغه ضروري او عاجل مواد چې په دې ډول لابراتوار کې یې لرل ضروري دي: ډول ډول سریښ [ مصنوعي یا طبیعي ] الکول ،دتېزابو بېلابېل ډولونه لکه د مالګې تېزاب،د ګوګردو تېزاب،چسپي مواد لکه پولي وینل بویترال،پولي وینل اسکاك،میتاکریلایت،او داسې نور مواد چې د عاجلو فعالیتونو په منظور لکه د اثارو استحکام،پیوند ،بیا جوړونې لپاره کارول کېږي .

کله چې لرغونپوه څېړونکی د خپل اړتیا وړ او د سپړنې لپاره ضروري وسایل تیار او برابر کړل بیا د مادي معلوماتو د غونډولو دویمه مرحله پیلېږي دا مرحله له خاصو علمي میتودونو څخه په کار اخستنه عملي کېږي، هغه وخت چې څېړونکي ته جوته شوه نوموړې سیمه د سپړلو لپاره کافي مواد او اثار لري بیا د یوه امتحاني کوهي [ څاه] په کېندلو پیل کوي خو پخوا تر دې چې امتحاني کوهي وکېني د لرغوني محل یوه دقیقه نقشه ترسمېږي چې د ساحې ټول طبیعي عوارض په برجسته توګه وښودل شي، څلور واړو خواوته پرتې سیمې معرفي شي، د طوالبلد او عرض البلد درجې وښودل شي د بحر له سطحې څخه لوړوالی او د ځمکې له سطحې څخه ارتفاع یې څرګنده شي او داسې نور مسایل چې په نقشه کې یې د ښودولو امکانات موجود وي برملا او وښودل شي د نقشې تر ترتیب وروسته له لرغوني محل دقیقه اندازه [ پراخوالي،ارتفاع او نور ] وښودل شي بیا وروسته له لرغوني محل څخه لرې دې یوه فرضي نقطه چې د [Detam Puant] ورته وایي تعین شي ددې فرضي نقطې مشخصات باید څرګندوي او داسې یوه بارزه نقطه وي چې د ځای تغیر یې ممکن نه وي په هر صورت کله چې فرضي نقطه وټاکل شوه بیا نو د امتحاني کوهي په سپړلو پیل کېږي، د امتحاني کوهي د کېندنې د ځای ټاکل د هغه د پراخوالي صلاحیت د لرغونپوه څېړونکي په واك کې دی، د لرغوني محل هغه ځای په پام کې نیسي چې د لرغونپوه څېړونکي په

نظر د زیاتو اثارو د شتون امکان ولري ددې تر څنګ د امتحاني کوهي د پراختیا په اړه لرغونپوه واك لري چې د محل په تناسب د کوهي پراختیا په نظر کې ونیسي په دې مانا چې که چېرې د سپړنې سیمه پراخه وي په هغه صورت کې امتحاني کوهي هم باید پراخه برخه ولري چې د ساحې او لرغوني محل د مناسبې فیصدۍ حد ولري که تصور وکړو چې تر څېړنې لاندې محل ۱۰۰ متره مربع ځای وي باید د امتحاني کوهي لپاره مناسب ځای د ۱۰ متره مربع په اندازه وټاکل شي، امتحاني کوهي باید په مربع ډول وکېندل شي ۱۰ په ۱۰ متره یا ۱۵ په ۱۵ متره کې او یا په دې ډول زیات یا لږ ساحه کې یې د سپړلو کار عملي شي.

کله چې لرغونپوه څېړونکی پر خپل اساسي فعالیت پیل وکړي د محل دښې پېژندګلوۍ امکانات تر لاسه کوي له همدغه امتحاني کوهي څخه لاس ته راغلي اثار کېدی شي د همدې سیمې د بېلابېلو فرهنګي اثارو نمایندګي وکړي، له هرې کلتوري طبقې څخه لاس ته راغلي اثار باید په بېل او ځانته پاکټونو کې ځای پر ځای شي د یوې کلتوري طبقې اثار بایدد بلې کلتوري طبقې له اثارو سره ګډ نه شي یا په بله مانا د امتحاني څاه د بسپړلو پر وخت باید په پوره دقت د لرغونپوه څېړونکي پاملرنه د محل ستراتیګرافي ته ګرځېدلې وي ستراتیګرافي د لرغونپوهنې او ځمکپوهنې لپاره کارول شوې اصطلاح ده چې [Strata] طبقه یا قشر[Grafie] لیکنه یا پوهنه ده چې په ترکیبي ډول [Stratigrafie] لیکل کېږي ددې اصطلاح د پرنسیپ له مخې تر ټولو زړه طبقه تر ټولو کښته طبقه ده او تر ټولو ځوانه طبقه ترلوړه طبقه ده [۳۴: ۲۹۴]

لرغونپوهان د څېړنو په جریان کې بېلابېلو لرغونو اثارو او شواهدو سره مخ کېږي ددې اثارو د ښه پېژندلو لپاره د دریو کټه ګوریو یا درې ډوله اثارو ویش منځته راغلی دی.

لومړی کټه ګوري اثار د ارتیفکت [Artefact] لاسي صنایع ، دویمه کټه ګوري فیوچر[Features] د ابداتو علامې ،دریمه کټه ګوري اسامبلج [Assemblage] د اثارو مجموعې په نوم یادېږي، ددې یادوشووکټه ګوریوله اثارو څخه هره یوه کټه ګوري د څېړنې او سپړنې خاص اصول او

موازین لري چې د خاصو موازینو په مراعات او کارونې سره د منطقي او لازمي نتیجې حصول ممکن کاردی خو د نه مراعات په صورت کې نه یوازې دا چې ددې اثر ذاتي ارزښت به له منځه تللی وي بلکې د سپړنې ټولې لړۍ ته د انحراف خطر متوجه کېږي چې پایلې به یې هیڅ ډول ګټه ونه لري.

د ارتیفکت [ Artefact] اصطلاح له دوو لاتیني کلمو څخه ترکیب شوې ده [Arts ]د هنر په مانا چې د هالندي ژبې [Kunst ]سره معادل ده او[Factum ]د صنعت په مانا چې د هالندي ژبې له[Gemaakt ]سره معادل ده چې کلي مفهوم یې پر ټولو هغو وسایلو چې په مصنوعي طریقه تولیدشوي وي اطلاق کېږي یا په بله مانا ارتیفکت [Artefact ] د انسان په لاس جوړ شوي وسایل دي. په لرغونپوهنه کې دا اصطلاح پر ټولو مصنوعاتو دلالت کوي خو نه پر ټولو وسایلو ځکه چې ځینې پخواني وسایل او اوزار د پخوانیو انسانانو له خوا په هماغه طبیعي ډول کارول شوي دي [۳۴:۳۱ ]

او د [Features ]اصطلاح مانا د سپړنې هغه ځایونه دي چې د پخوانیو ابداتو ببلګې ولري یا په بله مانا د پخوانیو ابداتو علایمو او ببلګو ته فیوچر وایي دا ډول اثار یا د سپړنې په ځای کې د ځمکې پر مخ پیدا کېږي او یا هم د یوې ښکاره ببلګې په توګه ځرګندوي [۳۴:۱۰۵ ]

او اسامبلج [Assemblage ]چې د لرغونو اثارو د مجموعې په نوم یاد شوی دی د اثارو دا کتګوري د لرغونو انسانانو خاصتا د ډبرې پخوانۍ دوره [Paleolithicum ]او د ډبرې منځنۍ دوره [Mesolithicum ]هغه اثار چې له ښکاري او مېوه ټولوونکو انساني ډلو څخه پاتې شوي دي چې معمولا په یوه محدود ځای کې ددې ډول وسایلو او اوزارو شتون زیات برېښي کله چې لرغونپوهان له داسې مجموعې سره مخامخ شي هغه د اسامبلج [Assemblage ]په نوم یادوي [۳۴:۳۲ ]

ټول هغه شواهد او اثار چې له یوه لرغوني محل څخه لاس ته راځي دارتیفکت په نوم یادېږي لکه خاورین لوښی، تبرچې، ډبرینې چړې، دزینت وسایل، غشي، لینډۍ، او له ډبروڅخه جوړې شوې د کار وسایل او

اوزار، ایدات یا کورونه او د فیوچر هغه جوړشوي کلتوري ودانۍ، کورونه، او د اوسیدو نور ځایونه چې پخوانیو انسانانو د خپل ژوند د سهولت په منظور جوړ کړي وي، لکه کورونه، تنورونه، کلي، ښارونه، او داسې نور چې لرغونپوه څېړونکی یې ذاتي انتقال نه شي تر سره کولای، خو ددې تر څنګ له لرغوني محل څخه ښایي داسې وسایل اوالات هم تر لاسه شي چې په طبیعي ډول او څېړې سره د یوې کلتوري طبقې په منځ کې واقع شوي وي، په دې مانا چې پخوانیو انسانانو یو شمېر داسې وسایل او اوزار هم کارولي دي چې د هغه په جوړېدو کې بشري قوه نه ده مصرف شوې هماغه ډول چې په طبعیت کې وو په هماغه ډول د انسانانو له خوا استعمال شوي او کارول شوي دي، د بېلګې په توګه ښایي ځیني داسې دایروي ډبرې چې انسان هغې ته شکل نه دی ورکړی په طبیعي توګه ګردې او دایروي جوړې شوې وي چې پخوانیو انسانانو کې به ځینو د دانو غلو د میده کولو په منظور ورڅخه کار اخستی وي او اوس د یوې کلتوري طبقې د نورو اثارو تر څنګ د لرغونپوه له خوا تر لاسه شي.

په هر ډول کله چې دامتحاني څاه د کیندنې لړۍ تر وروستنۍ طبقې یا د ځمکې تر پاکې لایې پورې ورسېدله نو د لرغونپوه څېړونکي وظیفه ده چې له لرغونو اثارو څخه د ټولو کشف شوواثارودکارت کتلاك ترتیب او تنظیم کړي.د کارت کتلاك ترتیب په خپل وار یوه بله مرحله ده چې د موزیمونو کار کوونکي په دې برخه کې د خاصو میتودونو لرونکي دي، خو لرغونپوه څېړونکی باید د ټولو کشف شویو اثارو او شواهدو د کوډ نمره وټاکي او دیوې لنډې بیوګرافۍ په څېر مطلب له اثارو سره یو ځای کړي او هر اثر چې ذاتي ارزښت لري په بېل پاکټ کې ځای پر ځای کړي [د کوډ نمره او لنډه بیوګرافي دیوه کارت په وسیله کېدی شي] د کوډ ټاکلو لارې هم د لرغونپوهانو تر منځ توپیر لري چې یوه ډېره پخوانۍ او ساده لاره یې له لنډیزونو [محففات] څخه ګټه اخستل دي. دبېلګې په توګه :که فرضیه داسې ونیسو چې سپړنې د ارزګان ولایت دهراوت ولسوالۍ کې تر سره شوي دي او له دې جملې څخه د یوه کوډړي کوډ

ټاکل وي په دې ترتیب لیکل کېږي، {O,D,9,2} په دې مانا چې {O} ارزګان، {D} دهراوت {9} د سپور شمېره او [2]د طبقې نمره ده د همدې لنډيزونو په لیدلو ویلای شو چې دا اثر د ارزګان ولایت د هراوت ولسوالۍ د لرغوني سیمې له{9} سوو او دویمې طبقې څخه لاس ته راغلی دی [په راتلونکي فصل کې به مفصل توضیح شي ] کله چې د لومړني کوډ ټاکلو مرحله پای ته ورسېدله بیا د یو شمېر رسمي اسنادو په وسیله د یوه قرارداد له مخې لرغونپوه څېړونکی خپل کشف شوي اثار له ټولو لازمو اسنادو سره یو ځای موزیم یا مخزن ته سپاري .

# دریم څپرکی

## په هالند کې د لرغونو سیمو د علمي سپړني بهیرعملي چارې

د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د لرغونپوهانو لـه خـوا د بېلابېلـو لرغونـو سیمو سپړنه او څېړنه په پر له پسې توګه پر مخ ځي. هالندي لرغونپوهان هم د نورې پرمختللې نړۍ د لرغونپوهانو په څېر د خپل هېواد لرغونې سیمې یو په بل پسې سپړي او لاس ته راغلې پایلې یې د هالند، اروپا او په پای کې د نړۍ د بشري تاریخ مرستندوی ګرځي. په هالند کې د لرغونو سیمو د سپړنو او څېړنو چارې د بېلابېلو ادارو او موسسو له خوا تر سره کېږي چې شمېر یې لسګونو موسسو او ادارو ته رسېږي، ددې ټولو ادارو څارنه او لارښوونـه د رفـاه، عـامي روغتیـا او کلتـور وزارت، ایـالتي لرغونپوهنـې، د ښاروالیـو لرغونپوهنـې او د تحصیلـي او تحقیقـي پوهنتونونو د ادارو له خوا په منظمه توګه پرمخ بېول کېږي، چې د ځینو ادارو او موسسود پېژندګلوۍ لنډه یادونه به وکړو :

دهالند هېواد د رفاه عامي روغتیا او کلتور وزارت په چوکات کې یو

شمېر تحقيقي او تحصيلي موسسې شته چې تر هېواد دننه او بهر د لرغونو سيمو د سپړنې او څېړنې دندې پر مخ بيايي، ددې وزارت يوه مهمه اداره د {R,C,B} يا {Raad voor Het Cultuurbeheer} چې کېدی شي [د کلتور څارونکې شورا]په مانا يې افاده کړو. دا موسسه چې د ۱۹۹۰ ميلادي کال له جنورۍ مياشتې راهيسې د همدې وزارت په مربوطاتو کې علمي هڅې ترسره کوي د يو شمېر پخوانيو ازادو موسسو په عوض مينځته راغله دا اداره په ځينو مواردو کې د هالندله يوې بلې موسسې {R,O,B} سره نږدې اړيکي او ګډې چارې لرلې .

د هالند په {W,V,C} وزارت کې يوه ډېره تجربه لرونکې موسسه د {R,O,B} په نوم يادېږي {Rijksdienst Voor Het Oudheidkundig Bodemonderzoek} په هالند کې تر ټولو نامتو موسسه چې د لرغونو سيمو د سپړلو او څېړنو دنده لري چې په پښتو ژبه کې ورته د [لرغونو اثارو د علمي سپړنو دولتي اداره [مرکز] ] ويلای شو همدا موسسه ده. ددې دولتي موسسې بنسټ پر ۱۹۶۱ ميلادي کال رسماً ايښودل شوی دی، په داسې حال کې چې د لرغونپوهنې لپاره د دولتي خدمتونو اداري لومړنۍ هڅې پر ۱۹۴۷ ميلادي کال پيل شوې دي چې بيا همدې اداري پراختيا او ودې د {R,O,B} دولتي موسسې د منځته راتللو زمينه برابره کړه،له دې سره سره چې د لرغوني زماني دولتي موزيم او د هغه اړوند پوهنتون د لرغونو سيمو د سپړلو حق ځان ته ساتلی خو په عمومي توګه د لرغونو سيمو سپړنه د {R,O,B} په وسيله تر سره کېږي، ددې دولتي موسسې د هراړخيزې ودې لپاره پر ۱۹۹۲ ميلادي کال يوه بله اداره چې تر اوبو لاندې لرغونپوهنې اداره {Afdeling Archeolog Onder Water} په نوم يادېږي هم له همدې موسسې سره وتړل شوه د {R,O,B} له خوا د هالند د لرغونې تاريخ په برخه کې پاموړ خدمتونه تر سره کړي دي د بېلګې په توګه ددې موسسې د ځينو سترو کارنامو يادونه کوو :

د هالند په غربي سواحلو کې د تاريخ او ماقبل التاريخي څېړنو تر سره کول .

د شرقي رودخانې په سيمه کې د {Maasdal} څېړنه چې په رومي

دورې پورې اړه لري .

د هالند په منځي [اموارو] رودخانو په سيمه کې د منځنيو پېړيو د پېيل اثار تر لاسه کول .

د {Urbanisatie} هغه سپړنې چې د منځنيو پېړيو يو شمېر ښاري مرکزونه يې تر لاسه کړل .

د ټول هالند لپاره د لرغونپوهنې يوه نقشه چې مقياس يې {1:100000} اټکل شوی د همدې موسسې له خوا ترتيب شوې ده **[د هيرلن يوه قطعه عکس]** په هالند کې يوه بله اداره چې د لرغونو سيمو سپړنه او څېړنه ترسره کوي او د {W,V,C} په وزارت پورې اړه لري، هغه د هالند نامتو موزيم دی چې د [لرغوني زماني دولتي موزيم ] په نوم مشهور دی پرله پسې هڅې او فعاليت لري چې د {R,M,O } په لنډ نوم او مکمل نوم يې {Rijks Museum Van Oudheden} دی چې په پښتو کې ورته د [د لرغوني زماني دولتي موزيم ]ويلای شو.

د {R,M,O,}موزيم له خوا په هالند کې دننه او بهر سپړنې او څېړنې تر سره شوې دي له هغو سپړنو څخه چې ددې موزيم د علمي ډلو له خوا تر سره شوي کيدی شي د بېلګې په توګه په مصر کې د ساکارا {Sakkara} نومې لرغونې څېړنې چې د انګليسي لرغونپوهانو ټولنې يا {EgyptExpleration Socity} سره يو ځای تر سره کړي دي همدا شان په سوريه کې د {Balikhdal} لرغونې سيمه چې د سابي ابياد {Sabi Abyad} په منطقه کې واقع ده د {R,M,O,} موزيم د علمي ډلو له خوا سپړل شوې ده له دې يادو شوو سيمو څخه د لرغوني زمانې [د ډبرو پخوانۍ دوره او منځنۍ دوره ]اثارو تر څنګ د لومړنيو مدنيتونو اثار چې له ۵۵۰۰ څخه تر ۴۵۰۰ پخوا تر ميلاد مربوط ګڼل شوي دي د همدې موزيم د علمي کارونو پايلې دي [۴۲:۳۲]

د هغې احصايې له مخې چې په دې ورستيو کلونو کې خپره شوې د {R,M,O,} په موزيم کې اوس اوس د نږدې ختيځ لرغوني اثار چې شمېرېې د ۸۰۰۰ څخه تر ۹۰۰۰ توکو پورې رسېږي ساتل شوي دي، همدا شان له مصر څخه له ۲۲۵۰۰ څخه تر ۲۵۰۰۰ اثار له کلاسيکي نړۍ څخه

۲۰۰۰۰ اثار او د هالند له قبل التاریخ دوري څخه ۲۰۰۰۰ اثاروډ ایالتونو څخه راټول شوي، د رومي دورې ۲۰۰۰ اثار او منځنیو پېړیو څخه هم ۲۵۰۰۰ ارزښتمن اثار ساتل کېږي [۳۲:۴۳]

په هالند کې د هر ایالت لپاره د لرغونپوهنې خپلواکه اداره شته چې د خپل ایالات په اړه د سپړنو صلاحیت او واك يې ورسره ساتلی دی، په دې برخه کې یوازې د یو شمېر ایالتي لرغونپوهنو ادارو د نوم او ادرس په لیکلو بسنه کوو:

1 Groningen: Onderzoek: BAT Post straat 6,9712 ER Groningen

2 Drenthe: Drents Museum Afdeling Archeology Brink 1-5 Post bus 134,9400AC Assen

3 Utrecht: Provinciaal en Gemeentelijk Depot van BodemvondstenZwaansteeg 11,3511VG Utrecht

4 NoordBrabant: Depot. Noord-Brabants Museum, verwerstraat 41 Postbus: 1004, 5200BA Denbosch

لنډه دا چې د هالنډ په ۱۲ ایالتونو کې د لرغونپوهنې خپلواکې اداري په خپلو اړوندو سیمو کې د لرغونو سیمو د جوتولو، سپړلو او څېړلو دندې پر مخ بیايي په داسې حال کې چې پر دې ایالتي ادارو سربېره لکه چې وویل شول د هېواد دننه او بهرنورې دولتي موسسې هم شته چې د لرغونپوهنې د څېړلو او سپړلو دندې پر مخ بیايي [۳۲:۴۵]

په هرډول د ۱۹۹۸ پر سپتامبر میاشت هالند ته د راتلو سره سم مې د هالند د 1COM دریس مېرمن {M.C.van der sman}سره د ښاغلي داکتر {Dr piet S.M. pouw} د {Reinwardt Academie} د موزیم پوهنې پوهنځي داستاد په وسیله د پېژندګلوۍ غونډه وشوه، له هغه وروسته د هالند د لرغونپوهنې اړوندو ځانګود لټون او له هغو سره د اړیکو د تامین په نیت مې پرله پسې هڅې وکړې او په پای کې وتوانېدم چې د ښاغلي {Will Nouwen} په مرسته مې د هالند د نامتو لرغونپوهنې موسسې {R,O,B} له یو شمېر لرغونپوهانو سره پېژندنه وشوه او په پای کې د همدې موسسې له خوا په لمبورخ {Limburg} ایالت کې د هیرلن {Heerlen} لرغوني سیمه کې د سپړنې په یو پراخ عملیاتي پروګرام کې برخمن شوم، د همدې سپړنو د تجاربو پر بنیاد غواړم د سپړنې عملي

لاربښود تر نوم لاندې د ځینو اړینوضروري مطالبو یادونه وکړم.

پخوا تر دې چې د سیمې د سپړلو چارې پیل شي دلرغونپوه څېړونکي له خوا باید یو شمېر ضروري فعالیتونه تر سره شوي وي دا ضروري مخکینۍ هڅې پر دوو برخو وېشل کېږي: لومړی د سپړلو ترمخه د لاژموعملي هڅو بشپړتیا او دویم د سپړلو د لړۍ ضروري توکي برابرول له لاژموعملي هڅو بشپړتیا څخه هدف دا دی چې د سیمې په اړه تاریخي، مادي، جغرافیایي او نور لاژم معلومات باید راټول شوي وي چې د سپړلو حکم د هماغو معلوماتو پر بنیاد عملي شي ضروري توکو برابرولو څخه منظور دا دی چې په سیمه کې باید د محلي ادارې اجازه نامه او د هغوی همکاري په لیکنې ډول د یوه قرارداد په څېر تنظیم شوي وي او تر څنګ یې د معیشت وسایل د کار تخنیکي او ابتدایي الات لکه د سپړنې ماشین، د لابراتوار ځینې برخې او د کار وسایل او ددې تر څنګ ډېره مهمه خبره د سپړنې لپاره کارکوونکي باید د یوه منظم مهال وېش پر بنیاد عیار شوي وي د کار زماني دوره د ورځې دکار ساعتونه ،د تفریح وختونه او د عملیاتو لیکل شوی پلان، ددې ضروري مسایلو تر تهیه کیدو وروسته لرغونپوه څېړونکی د خپل څېړنیز ټیم سره ساحې ته ځي او سپړنې پیلېږي ددې لپاره چې د سپړنې د عملیاتو پروسه په منظمه توګه توضیح او تشریح شي لاژمه به وي د یوه لنډ راپور په توګه د سپړنې هغه پروسه چې د {R,O,B,} موسسې د هیرلن په سیمه کې عملي کړې او زه هم ددې عملیاتو برخه وال وم ولیکم د هیرلن سپړنې د ۱۹۹۹ کال د جولای له ۲۶ نېټې څخه بیا د سپتامبر تر ۳ نېټې پورې تر سره شوې، د سپړنو علمي لاربښوونه د {Jos Deeben}او اداري مشري یې د {Jose Schreurs} پر غاړه وه {Jos Deeben} د هالنډې د لرغونپوهنې نامتو موسسې {R,O,B} مشهور لرغونپوه دی چې د هالند په بېلابېلو سیمو کې یې سپړنې تر سره کړې او اوس د هالند د ډبرې د عصر {Stone Age} چې په هالنډي ژبه کې ورته {Steeritijd} وایي د نامتو متخصص په توګه پېژندل شوی دی، نوموړی د زیات شمېر اثارو مولف دی، لیکل شوې مقالې یې په انګلیسي او

هالندي ژبو په هالند کې دننه او بهر خپرې شوې دي، د {Jos Deeben}
وروستی اثر پر ۱۹۹۸ میلادي کال د {Bijdragen aan het onderzoek
naar de steentijd in Nederland}تر عنوان لاندې د {R,O,B} اداري له خوا
خپور شوی دی، ددې اثر د عنوان پښتو مانا [د هالند د ډبري عصر په
هکله علمي لیکنې ]ده(Jose Deeben) هم یوه فعاله علمي کارکوونکې
وه چې په هالنډي کې یې د لرغونپوهنې په اړه زیات شمېر مقالې خپرې
شوې، وروستۍ مقاله یې د {Maastricht klinkers} په نوم خپره شوه چې
په هالنډکې د زیاتو لرغونپوهانو د پاملرنې وړ وګرځېدله .

د کار لومړۍ ورځ : د هیرلن {Heerlen} ښار تر ټرین ستېشن ته نږدې
پروت دی چې د هالنډ له بېلابېلو سیمو څخه لږ تر لږه ۱۵ تنه ځوانان
اود پاخه عمر کسان راټول شول او د لسو بجو شا او خوا وخت و چې زه
هم وررسېدم د دو موټرو په وسیله د سپړنې محل ته ورسول شو دا
ساحه چې د یوې لوړې تپې څېره یې درلوده د سپړنې دوه نورې دورې
یې هم زغملې وې. راغلي کسان ټول یو له بل سره معرفي شول هر یوه
خپل نوم او تخلص په لوړ اواز چې ټول یې واوري یاد کړل، د
لرغونپوهانو له عادت سره سم په ساحه کې د تخلص پر ځای اصلي نوم
اخستل کېږي د بېلګې په توګه د سپړنو د علمي لارښود نوم {Jos} او
تخلص یې {Deeben} دی خو په ساحه کې ټولو هغه ته په {Jos} ویل او دا
عادت د ټولو په مورد کې عملي وو.

ساحه پخوا ټاکل شوې وه دخپل ځان تر خپل معرفي کولو وروسته
{Jose} ټولو راغلو کسانو ته ساحه لنډه معرفي کړه، د پخوانیو سپړنو
نتایج یې وویل او د اوسنیو عملیاتو د پلان هغه برخه چې موږ ټول باید
خبر شوي وای د هغه په اړه یې معلومات ورکړل، د کار د پیل نقطه یې
وټاکله او د راغلو کسانو تر منځ یې د کار وېش واوراوه، د بېلګې په
توګه ما [رسول باوري ]ته د ټاکلې سیمې د اندازې نیولو په برخه کې
کار په ګوته شو او دا د کار لومړنی پیل هم وو. فقط کار پیل شو [هره
ورځ به د کار وېش اورول کېده ] د سلو او دوه سوو متره فیتو په وسیله
مو د سپړنې د لومړنۍ مرحلې ساحه وټاکله، دا ساحه چې ۵۰ متره یې

اوږدوالی وو، ۴۰ متره يې سور درلود ، د فلزي مېخونو په وسيله به مو مشخصه کړه د همدې محدودې شوې سيمې په دننه کې د سپړنې ماشين {Rups Kraan} پر کار پيل وکړ او د سپړنو ګډوونکوونکو له ماشين سره يو ځای د پاکې شوې ساحې د روښانتيا لپاره پاك کاري پيل کړه {Schoon maaken} د ماشين په وسيله به د يو متر په اندازه خاوره د ساحې له مخې لرې کېدله او د ساحې د پاك کارۍ لپاره يو يا دوه سانتي خاوره د يوم په وسيله لرې کيدله چې د سپور {Spoor} څرګند ونه په واضېحه توګه وشي د پاکې شوې ځمکې پر مخ د متفاوتې علامې شتوالی د سپور په مانا دی {Spoor} چې په پښتو ژبه کې ورته د اثر او يا علامې مانا کارولای شو، سپور تر څېړنې لاندې سيمې هغه برخه ده چې په هغې کې د کلتوري اثارو د شتون بېلګې ولري، سپور په لومړي ځل نه شي تاکل کېدی چې ايا کلتوري اثر به ولري که نه خو دا چې د ځمکې له نورو برخو څخه يې يا رنګ بېل څرګندېږي او يا يې د خاورې ډول متفاوت وي، د سپور په مانا پېژندل کېږي کله چې سپور وټاکل شي بيا د هغه د سپړنې چارې داسې ترسره کېږي.

لومړی : له سپور څخه يوه قطعه عادي عکس اخستل کېږي .

دويم : سپور د عمومي نقشې پرمخ ترسيمېږي .

دريېم : سپور د يوه خط په وسيله پر دوو برخو وېشل کېږي .

څلورم :پر وېشل شوی سپور له يوې يا بلې خوا د سپړلو کار پيل کېږي .

پنځم : د سپور د هرو پنځو ثانيو سپړل شوې خاوره په بېل پاکټ يا پلاستکي خريطو کې اچول کېږي .

شپږم : دسپور له هرو پنځو سانتي مترو [5c,m ]څخه لاس ته راغلې اثار د يوه کارت په وسيله راجستر کېږي او په بېل پاکټ کې ساتل کېږي .

اووم : له هرو لسو سانتي مترو {10c,m}وروسته د ساحې له عمومي سطحې څخه د سپور د ټيټېدو د اندازې معلومول د واترپاس {Water Pas}په وسيله .

اتم : د واترپاس په وسیله تر اندازې تاکلو وروسته د یوې قطعې عکس اخیستل [که چېرې په لومړۍ یا دویمې پنځه سانتي متره اندازې کې کوم فوق العاده اثر پیدا شو د هغه اثر د عکس اخیستلو پروسه استثنایي ده ] .

نهم : د سپور د سپړلو کار د همدې اصولو پر بنیاد تر پاکې ځمکې رسېږي .

لسم : له سپور څخه تر لاسه شوې خاورې د زیف ماشین {Zeef machine} په وسیله تصفیه او مینځل کېږي ، په دې ترتیب د سپور له تاکلو څخه بیا تر وروستۍ مرحلې د سپور د سپړلو پروسه پرمخ ځي د پاملرنې وړ خبره دا ده چې هره مرحله ځان ته د کار لاره او هراړخیزې توجه ته اړتیا لري، د بېلګې په توګه د سپور ترسیمېدل د عمومي نقشې پرمخ یو ستونزمن کار دی، ددې کار لپاره لومړی باید د سپور تول ساحه یا {Put} وښودل شي [لرغونپوهان تر څېړنې لاندې ساحې په تاکلوسره حدود وویشي چې هر تقسیم ته یې {put} ویل کېږي ]وروسته بیا د سپور وسعت او پراختیا دجیودیزیکي وسایلو په وسیله تاکل کېږي تر هغه وروسته د سپور شکل ته پام ګرځي چې دایروي دی که مثلث شکله او یا مسطتیل شکله او یاهم نامرتب او نامنظم .

په دې ډول په عمومي نقشه کې د سپور کاپي د مقیاس په نظر کې نیولو سره ترسیمېږي د سپور دپروفیل {Profiel} رسمېدل ځان ته میتود لري چې لرغونپوهان یې د جیودیزیکي مضامینو په ترڅ کې د پوهېدو جوګه کېږي [{Profiel} د سپور هغه نیم مخ دی چې لرغونپوهان یې د کلتوري طبقو دمعلومولو لپاره جوړوي ] له سپور د هرو پنځو سانتي مترو څخه لاس ته راغلي اثار باید په یوه کارت کې راجستر او بېل پاکټ کې واچول شي په دې کارت کې چې د اثر د بیوګرافۍ حیثیت لري د پر له پسې نمرې تر څنګه کله نور معلومات لکه ایا دا اثر د {put} څخه تر لاسه شوی ؟ له {vlak} یا صحنې څخه تر لاسه شوی؟ له سپور {spoor} څخه تر لاسه شوی او که یوه نمونه ده ؟ ددې تر څنګ د تر لاسه کېدو نېټه ضروري پاملرنه غواړي. {R,O,B} اداري هغه دوه کارتونه

چې د همدې چارې لپاره کارول شویدي.




د کارت توضیح : {H,R,L, 98 Schelsberg} د هیرلن د سخیلبیرخ کلتور {R,O,B} د سپړنې دسولې اداري نوم دی.

{98 HRI 000999} د هیرلن ۹۸ کال د کارت پرله پسې نمره {PUT} ساحه، {VLOK} صحنه، {SPOOR} طبقه، {MANSTER} نمونه، {DATUMS} تاریخ یا نېټه.

د واترپاس {Water pas} په وسیله د سپور {Spoor} د سپړل شوې اندازې تاکل هم پوره دقت ته اړتیا لري د ټولې ساحې د عمومي سطحې ژوروالی د ځمکې له لومړنۍ طبقې څخه باید څرګند شوي وي یا په بله مانا باید معلومه وي چې تر سپړنې لاندې ساحه د ځمکې له لومړني قشر څخه په څومره اندازه ژوره ده تر هغه وروسته بیا د ساحې د هر سپور د ژورتیا اندازه ټاکل کېږي، واترپاس یا په دري ژبه کې ورته د دوربین اصطلاح ورکړ شوې ده په یوه ټاکلې ځای کې چې دهغې ورځې په جریان کې تغیر نه خوري یا په بله مانا نه بېځایه کېږي او د پټ{put} شماره یې هم ثبت کېږي له هغه دوربین څخه د سپور په دننه کې یو لوی

خط کش یا {Liniaal Maaten} یا [داندازه کولو خط کش] د سپور په ټاکلي ځای کې درول کېږي او د جیودیزیکي اصولو پر بنیاد د سپور اندازه او ژوروالی څرګندوي ټاکل شوې اندازه د نقشې پرمخ د هغه سپور سکېل{Scala} په نظر کې نیولو سره لیکل کېږي [ په لاندې دو عکسونو کې د بلجیم هېواد د بروکسل د لرغونپوهنې دیپارتمنت یو تن محصل{Alexander} چې د عملي زده کړو پراکتیک{Praktijk} لپاره د هیرلن سپړنو ته رالېږل شوی وو لیدل کېږي ]



الکساندر{Alexander} د هیرلن{Heerlen} په لرغوني سیمه کې د{Water

pas} شاته ولاړ دی



د بلجیم هېواد یو تن د لرغونپوهنې محصل{Alexander} د اندازې پیداکولو خط کش (Liniaal maten) سره لیدل کېږي

له سپور څخه د عکس اخستل هم ځانته شرایط او د ځینو مراحلو ترسره کول ایجابوي، د بېلګې په توګه : هغه وخت چې له سپور څخه د عکس اخستلو اړتیا وي تر هر څه لومړی سپور او د سپور شا او خوا پاك کاري کېږي بیا د سپور په یو ټاکلې برخه کې یو کارت چې معمولا

چوکات شوی وي اینبودل کېږي [دا کارت د يو شمېر معلوماتو لرونکی وي چې تاسو يې يوه کاپي وینئ]په کارت کې د څېړونکې اداري نوم او ادرس، د پروژې او د پروژې اجراکوونکي نوم ،د ښاروالۍ نوم، کوډ او کال ،او د اثر نوم يا د سپور نومره لکه چې د کارت په يوه کاپي کې لیدل کېږي د {R,O,B} د عکس اخستلو فورمه او د همدې موسسې ادرس د کارت په يوې خوا لیکل شوي او په مقابل کې يې د پروژې نوم،دښاروالې نوم او کال او د اثر نوم لیکلو لپاره ځای ټاکل شوی دی، تر هغه وروسته په روښانه لیك {HRL-99} چې د {Heerlen 1999} کال د سپړنو نمایندګي کوي د کارت په وروستۍ برخه کې د ساحې،صحنه،پروفیل،سپور ،تاریخ،او د عکاس نوم لیکلو لپاره ځای ټاکل شوی دی، په هر ډول له همدې کارت سره يو ځای يوه وړه لوحه چې په سپین او سره رنګ جوړه شوي وي [د اندازې ښودلو لپاره ] اینبودل کېږي او بیا د عکس اخیستلو چاره تر سره کېږي.

ROB

Rijksdienst voor het
Oudheidkundig
Bodemonderzoek

Kerkstraat 1
38 11 CV
Amersfoort

Proj. naam ........ Proj. nr. ........
Gem. code + jaar ........ Krt. bl. ........
Obj. naam ........ Obj. nr. ........

Foto-opname formulier

HRL-99

Omschrijving:

Putnr.:
Vlaknr.:
Profiel:
Spoornr.:
Datum:
Fotograaf:

Neg. Nr.:
Dia Nr.:
Arch.:

Volgnr.:

لـه سپور څخـه راایسـتل شـوې خـاورې د زيـاتې څيړنـې لپـاره پـه
پلاستيکي کڅوړوکې اچول کيږي او د هرې {5CM} خاورې کڅوړې پـه
بيلابيله توګه د {Zeef machine} تـه د وينځلو او تصفيـې پـه غـرض وړل

کېږي. د وينځلو پروسه هم زياتې پاملرنې ته اړتيا لري، د زيف ماشين په خپل منځ کې د غلبېل په څېر وسيله لري، چې هغه ته{Zeef} وايي، نوموړې وسيله د ماشين په ټاکلي ځای کې ځای پر ځای کېږي او د شامپو او صابون [دا کمياوي مواد دي چې د همدې هدف لپاره توليد ېږي ]له اوبو سره يو ځای د سپور څخه د راوړل شويو خاورو مينځل تر سره کېږي [عکس] او د زيف ماشين په وسيله پاك وينځل



په عکس کې (Jos Deeben ) او يوه محصله د زيف ماشين

(Zeef machine) شاته په کار بوخت دي.

شوي اثار د سپور له پخواني کارت سره يوځای په يوه پلاستيکي کڅوړه کې له نوي کارت سره چې په هغه کې هم د اثر په اړه فورمولتې معلومات دي اچول کېږي لنډه دا چې د سپړنې ورځني کارونه په همدې ترتيب پر مخ ځي، لرغوني اثار لاس ته راځي او په مناسبو پاکټونو او کڅوړو کې ساتل کېږي کله چې د ساحې ورځنی کار پای ته رسېږي د کار ټول وسايل لکه يوم، بېلچه، کلند، دزيف ماشين، اونور ټول پاك او وينځل کېږي بيا وروسته د ترانسپورت هغه وسايط چې د سپړنې د عملياتو لپاره بېل شوي د سپړنو ګډونکوونکي خپلو خپلو درسونو ته رسوي [بايد وويل شي چې د سپړنو ګډونکوونکي ټول د خپلې خوښې کسان {Vrijwilig}دي چې د معاش او حق الزحمې په بدل کې کارنه کوي، بلکې د خپلې خوښې کار دی، د لرغونپوهنې مينه وال په هالند کې د سپړنو موسسو ته راځي او په خپله خوښه دکار لپاره نوم ليکي اود خپل کار وخت ټاکي، د سپړنو اړوند اداره له خپل پلان سره برابر د کار داوطلبان او د سپړنې پروګرام داسې تنظيموي چې هم کار پرمخ ولاړ شي او هم رضاکاران ستړي او مايوسه نه شي، د بېلګې په توګه د سپړنو په جريان کې د اوونۍ يوه ورځ د تفريح په نوم د مربوطې سيمې موزيمونو،لرغوني ځايونو او پارکونو ته ځي کيدی شي په اوونۍ کې يوه ورځ يا د ښوورځو څو ساعتونه وي ] سپړنوله ګډونکوونکو څخه يو شمېر د شپې له خوا د هغو اثارو په مينځلو او پاکولو بوختېږي چې د ورځې په بهير کې يې تر لاسه کړي وي .

د اثارو د مينځلو او پاکولو کار هم پوره مواظبت او پاملرنه غواړي ټول هغه اثار چې پاك او ومينځل شي په خاصو فورموکې ثبت او راجستر کېږي، د بېلګې په توګه يوه هغه فورمه بايد ډکه شي چې د ورځې په جريان کې دټولو پيدا شويو اثارو لپاره اختصاص شوې ده [ايا لومړی فورمه ] چې د کشف شويو اثارو د لست فورمه {Vondstenlist} يې بولي د {put}نومره د ساحې نومره پخوانۍ يا تعقيبي نومره د سپور نومره د نمونې کود ،پروفايل نمره او د يوې ورې ترضيح ځای چې دا اثر

راټول شوی او که په سپور کې پيدا شـوی داثاروتعداد په بنيـادي ډول د کومې سيمې څخه پيدا شوي او تاريخ يا نېټه هم لـري په دې ترتيب ټول هغه اثار چې د ورځې په جريان کې پيدا شوي په همدې فورمه کې ثبت او راجستر کېږي، د همـدې کشـف شـويو اثـارو د لسـت فورمـه {Vondstenlijst} بايد د خپلې پېژندنې علايم هم ولري لکه چې تاسې د فورمې فوتوکاپي وينئ چې په هغې کې د {R,O,B} نـوم او ادرس پـه روښانه ليك ليکل شوی دی، ددې تر څنګ د پروژې نوم د ښاروالۍ نوم او د اثرکوډ ياد اثارو د مجموعې نوم او همدا شان د پـروژې نومـره د کارت نومره او د موضوع او مضمون يا اثـر نومره هم په دې فورمه کې واضېحه ليـدل کېږي دا فورمه چې د اثـارو د ضـروري پـاکېدنې او مينځلو وروسته ليکل کېږي، د ساحوي څېړنې د عملي کار وروستنی کار ګڼل کيږي لرغونپوه څېړونکی ټول راجستر شـوي اثـار او د هغـو لست موزيم او يا بلې موسسې ته چې پخوايې د قرارداد په وسيله ښودنه شوې وي ورکوي.

د سپړنو په جریان کې لرغونپوه څېړونکی باید له ورځینیو مسایلو سره د دقت او پاملرنې تر څنګ ابتکاري چلند او رویه ولري په دې مانا چې د سپړنې کار په ټولو سیمو او دلرغونو زمانو په ټولو دورو کې یو ډول نه دی اوان د یوې ورځې کار د بلې ورځې له کار سره بنایي تفاوت او توپیر پیدا کړي او یا دا چې د کار په جریان کې داسې یوه پېښنه وشي چې وړاندیزیې نه وي شوی، باید لرغونپوه څېړونکی د غیر ناڅاپي پېښنو پر وخت ځان ورك او له لاسه ورنه کړي او یا داسې هم واقع کېږي چې د ساحې په یوه برخه کې د ډېر ارزښتمن اثر څرك ولګېږي لرغونپوه څېړونکی باید د ساحې نورې برخې هېرې نه کړي او خپله پاملرنه یوازې هغه اثر ته ونه ګرځوي، په هرډول د سپړنې چارې ابتکاري چارې دي نو ځکه لرغونپوه څېړونکی هم له مسایلو سره باید ابتکاري چلند ولري په ټینګارسره د یادونې وړده چې د سپړنې سیمه او د سپړنې لپاره د ټاکلې دورې په اړه د سپړنې چارې او د سپړنې میتودونه کاملا توپیر لري، پورتنۍ یاده شوې پروسه په یوه خاورینه غونډۍ کې د ډبرې دورې، په ځانګړې توګه د نوې ډبرې منځنۍ دورې یا {Middenneolithisch} ته غوره ګڼل شوې ده، ځکه له همدې میتود څخه چې یادونه یې وشوله کار واخستل شو او له دې طریقې څخه په کار اخستنې سره د سپړنې چارې ډېرې په بریالیتوب پرمخ تللې او وروستۍ پایلې یا نتیجې یې هم د هالند هېواد د لرغوني تاریخ په ځانګړې توګه د ډبرې د منځنۍ دورې لپاره ډېرې ارزښتمن او دنویو معلوماتو راوړونکې سپړنې وګرځېدلې، د سپړنې هغه عملیات چې د اندهوفن{Eindhoven} د ښاروالۍ مربوطاتو، په ځانګړي ډول{Smal Eindhoven} په سیمه کې چې د منځنۍ پېړۍ {Middel eeuws} اثار یې درلودل او د سپړنو مشري د همدې ښاروالۍ د لرغونپوهنې ادارې د مشر {Nico Arts} پر غاړه وه د سپړنې

میتود يې د هیرلن د سیمې د سپړنې له میتود څخه متفاوت و [په دې سپړنو کې هم لیکونکي برخه درلوده ] خو هغه سپړنې چې د {Merhoven} په نوم په لرغونې سیمه کې تر سره شولې د سپړنې د میتود له مخې د هیرلن د سپړنې د میتود او دکار له ډول سره ورته والی درلود ، لنډه دا چې د هرې لرغونې سیمې او هرې لرغونې دورې د میتود او د چارو د سمبالتیا ډول د سیمې او دورې په ایجاباتو پورې اړه لري خو د لرغونپوه څېړونکي ابتکاري چلند د سپړنو او څېړنو په پرمختګ او تنظیم کې بنیادي رول او ارزښتمنه برخه لري ·



# څلورم څپرکی

## د لرغونو اثارو بیا جوړونه

د لرغونو اثارو زیاته برخه په مستقل او یا هم ویجاړ شوي ډول د لرغونپوهانو لاس ته رسېږي دا ډول مواد او اثار که له ډبرې څخه جوړ شوي وي او که له فلز او یا عضوي موادو څخه بیا هم بیا جوړولو ته اړتیا لري لرغونپوهان اود لرغونو اثارو د بیا جوړولو متخصیصین له خپلو خاصو علمي میتودونو څخه په ګټې اخستنې سره دا اړتیا لرې کوي او نوموړي پوهان زیار باسي چې لرغونی [شی ] په هماغه شکل چې پخوایې درلود [د کار اخستنې په اولو وختونو کې ]د بیا جوړونې هڅې تر سره کړي .

د لرغونو اثارو بیاجوړونه {Repareren} په دوه ډوله تر سره کېږي، لومړی د لرغوني اثر[شي] بیا جوړونه په تیوریکي ډول [ګرافیکي عددي او نور] دویم د لرغوني اثر بیا جوړول په طبیعي ډول یا د اثر مادي جوړښت [د هغه شي له پارچو او ټوټو څخه] معمولاً د لرغونو اثارو تیوریکي بیاجوړونه د علمي څېړنو په منظور تر سره کېږي په داسې حال کې چې د لرغوني اثر طبیعي بیاجوړونه د موزیمي ښودنې

[نمایش موزیم ] په منظورترسره کېږي چې د لرغونو اثارو د بیا جوړونې دواړه ډولونه ځانته خپل خاص پرنسیپونه او میتودونه لري چې په لنډه توګه به ددې اصولو یادونه وکړو:

تر هر څه دمخه ددې مطلب یادول ضروري دي چې د لرغونو اثارو له بیا جوړونې څخه هیله او هدف څه دی ؟ دې پوښتنې ته یو ډېر لنډ ځواب شته او هغه دا چې اول د لرغوني اثر بیاجوړونه د علمي څېړنو د ښه بري او له هغو څخه د منطقي پایلو د تر لاسه کېدو په نیت د لرغوني اثر بیاجوړول ضروري دي، دویم دا چې د موزیمونو مینه وال هغه اثار چې په پخوانۍ څېره او شکل ویني د زیاتې پاملرنې وړ یې ګرځي، نسبت هغه اثر ته چې ټوټې یې ایښودل شوې وي [۲۵:۲۶ ]

د لرغوني اثارو تیوریکي بیاجوړونه په لرغونو اثارو کې د هغو پدیدو بیا راپیدا کول دي چې په تخنیکي،تکنالوژیکي،او وظیفوي لحاظ یې مطالعه او څېړنه زیات ارزښت لري، د تیوریکي بیاجوړونې د کار نتیجه کېدی شي د حساب،فورمول،شکل،چارت،انځورونو،او حتا کلماتو د توضیح په څېر وړاندې شي، په هغه صورت کې چې د تیوریکي بیاجوړونې د کار په نتیجو پوره باوري واوسو کېدی شي له نوموړي اثر څخه د ارزښتمنې منبعې په توګه د لرغونو اثارو د څېړنې لپاره ګټه پورته کړو که ددې مثال بل اړخ ته وګورو د لرغونو اثارو تیوریکي او له هغې جملې نه ګرافیکي بیاجوړونه په عمده ډول د لرغونپوهانو ډلې ته ضروري او لازمي ده چې د لرغونو اثارو په هکله علمي څېړنې تر سره کوي .

د لرغونو اثارو طبیعي بیاجوړونه د دود په ډول پنځوس فیصده د هغو پارچو ضرورت او موجودیت لازموي چې لرغونی [شی] ورڅخه جوړوو، که چېرې یو لرغونی خاورین لوښی په نظر کې ونیسو او وغواړو چې د طبیعي بیاجوړونې په ډول یې جوړ کړو په هغه صورت کې ضروري ده چې د نوموړي خاورین لوښي لږ تر لږه په سلو کې پنځوس پارچې یا ټوټې وجود ولري چې وکړای شو په طبیعي ډول هغه خاورین لوښی بیاجوړ کړو چې په پخوا زمانو کې د انسانانو د ګټې

اخستني لپاره موجود و، د لرغونو اثارو دا ډول بیاجوړونه د موزیمي ښودنو[نمایشات موزیمي]لپاره ضروري او ډاډمنه طریقه ده .

که د لرغونو اثارو ددې دوو طریقو له تفصیلي بحث څخه تیر شو ضروري بریښي چې د موضوع په اړه د بېلګې په توګه د ځینو لرغونو اثارو د بیاجوړونې د هڅو پروسه په لنډه توګه بیان کړو، خو وړاندې تر دې چې د بېلګو پر بحث پیل وکړو لازمه ده چې دیوه مجهز لابراتوار او په هغه کې دهغو موادو چې د اثارو د بیاجوړونې لپاره ضروري دي یادونه وشي .

**الف : مجهز لابراتوار** : تر هر څه دمخه د ترمیم او بیاجوړونې لابراتوار باید داسې ځای کې موقعیت ولري چې لازمه روښنایي،هوا ،د تحویې وسایل،او منظم برېښنایي مصون سیستم ولري، په لابراتوار کې باید د الماریو بېلابېل ډولونه موجود وي لکه ښیښنه یې الماری،فلزي الماری، د لرګیو الماری چې د لرغونو اثارو د ساتنې او پالنې لازم شرایط برابر کړای شي، ددې تر څنګ ځینې مخصوصې الماری چې د کیماوي موادو د ساتنې لپاره جوړېږي هم باید په لابراتوار کې موجود وي، د لرغونو اثارو د بیا جوړونې په منظور په کیماوي او رادیواکتیفي موادو باندې د کار کولو لپاره لاندې وسایلو ته اړتیا شته : مخصوص کیماوي لوښي په بېلابېلو اندازو چې ځیني یې دښیښې ځینې یې فلزي وي ربړي لاس پوښې [دستکش هاي رابري ]ګیرامونه،عطرښندونکي پنبه،ململ،د اندازه کولو وسایل،لکه طبي ترازو ،ډول ډول وزنونه،درجه لرونکي بېلابېل لوښي،ترمامیترونه،زنګ لرونکی ساعت،او نور په همدې ترتیب لیدنیز وسایل[وسایل بصري]میکروسکوپ،زره بین،اود هغې ډولونه او نور د لرغونو اثارو د پاکېدو لپاره کلك اونرم فلزي، پلاستیکي ،مومي،برسونه،ډول ډول ړمنځی دجراحی چړې اود هغوډول ډول سیتهونه! د فلز پرېکولو بیاتي او دا ډول نور وسایل .

په لابراتوار کې باید ځینې کیماوي مواد هم موجود وي لکه

مصنوعي کنډرې [صمغ مصنوعي ] پولي بيتل ميتا کريلايت،پولي وينل بوتيرال،پولي وينل اسکاك او نور عضوي محلولونه لکه اسيتون، ګيستون،ستيرايت،بنزول،او نور. انتي سيپتکونه : خالص سپرايت،فورمالين،تيمول او نور.

تېزابونه لکه : د ګوګړو تېزاب،د مالګې ،سرکې،ليمو تېزابونه او نور. قلوي ګانې: سوديم هايدرواکسايد ،پوتاسيم هايدرواکسايد او نور د نرمېدلو وسايل: ګلسيرين،د رسم غوړي،کوچك، پارافين،طبيعي موم او نور چونه [اهاك] هم بايد موجود وي تر ټولو مهمه خبره د اور وژلو وسيله او د خطر زنګ بايد حتما موجود وي چې کارکوونکي د لازم امنيت په لرلو سره خپلې هڅې تر سره کړي، په لابراتوارونو کې ياد شويوشيان او يو زيات شمېر نورو مواد چې دلته يې يادونه نه ده شوې بايد موجود وي چې د لرغونو اثارو د بياجوړونو پروسه په ښه ډول پرمخ ولاړه شي، خو ددې ترڅنګ بايد لرغونپوه سره دځينو کيماوي او مصنوعي موادو او وسايل وي چې په ساحه کې د سيمو د سپړلو او څېړلو پر وخت ورځخه ګټه واخلي او له هغو څخه لومړنۍ او عاجلې مرستې پوره کړي، اوس به د لرغونو اثارو د بيا جوړولو د څو بېلګو په توګه د خاورينو لوښو يادونه وکړو، څرګنده به شي چې د خاورينو لوښو بياجوړول کومې مرحلې لري او تر څه ډول عملياتو وروسته بيا موزيم ته د لېږلو جوګه کېږي د موزيم په ويترونونو کې د مينه والو پام ځان ته واړوي .

**ب : د خاورين لوښي بيا جوړونه** : لرغوني خاورين لوښي هغه وسايل دي چې له اخښل شويو خټو څخه جوړې شوي او د اور د تودوخې په وسيله د اومه حالته پاخه حالت ته رسېدلي وي، دا ډول خاورين لوښي په بېلابېلو شکلونو او څېرو د لرغونپوهانو له خوا په لرغونو سيمو کې د سپړنو په جريان کې رابرسيره کېږي، دا ډول خاورين لوښي چې پخواني انسانانو کارولي او ورڅخه يې ګټه اخستې ده، په عمومي توګه د مقاومت په دريو حالاتو کې تر لاسه کېږي .

لومړی حالت يې ډاډمن حالت يا [قناعت بخش خوب]دويم حالت يې

ویجاړشوی حالت او دریم حالت یې زیات ویجاړ شوی حالت دی یا په بله مانا لرغونی خاورین لوښی په عمومي توګه په دریو حالتونو کې تر لاسه کېږي، لومړی حالت یې هغه دی چې لوښی نسبتا ثابت پاتې شوی وي هغه ته د قناعت وړ حالت هم وايي دویم حالت یې هغه دی چې خاورین لوښی په کلي یا قسمي توګه نه وي خراب شوی یوازې ځینې برخې یې خرابې شوې وي هغه ته ویجاړ حالت وايي او دریم حالت یې هغه دی چې شی په کلي توګه له خپل اصلي حالت څخه وتلی وي یوازې د علایموشته والی یې پر موجودیت دلالت وکړي، دې حالت ته دېرویجاړشوی حالت وايي [۲۵:۳۶]

ددې دریو حالتونو د پاکولو او بیاجوړولو طریقې او میتودونه یو له بله سره توپیر لري په دې برخه کې ددریو حالتونو له لنډ بیان سره بحث ته دوام ورکوو .

**لومړی حالت** : هغه خاورین لرغونی لوښی چې د قناعت وړ حالت یا ډاډمن حالت کې لاس ته راغلی وي زیاتو هڅو ته اړتیا نه لري ښایي دا ډول ظروف او لوښي په ډېره لږه اندازه پیدا شي چې یوازې د اهکي رسوباتو لرونکي وي، کېدی شي د لوښي پرمخ د اهکي رسوباتو له منځه وړلو لپاره له یو نسبتا سخت پلاستیکي برس څخه کار واخستل شي او په عادي اوبو منځلو یې پخوانی حالت اعاده شي په ځینو خاصو حالاتو کې کله نا کله له جراحي چاقوګانو څخه هم کار اخستل کېږي په دې ډول نه چې د لوښي کیفیت ته تاوان ورسوي فقط ددې چاقوګانو په وسیله د لوښي ځینې مضمین اهکي ټکي چې دلوښي پرمخ ښکاري لرې کېدی شي چې دا هم د متخصیصینو لازم مهارت ایجابوي .

**دویم حالت** : که چېرې لرغونی خاورین لوښی په ویجاړ شوي حالت کې په لاس راشي په هغه صورت کې دلرغوني لوښی پر مخ د اهکي قشرو له منځه وړلو لپاره ضروري ده چې د مالګې تېزاب له اوبو سره یوځای په یوه ښیښه یي لوښي کې واچول شي او خاورین لوښی ورو

ورو ښینښه یي لوښي کې ورغوټه شي، دا لرغوني خاورین لوښی تر هغه وخته په همدې محلول کې ساتل کېږي چې د هغه پرمخ اهکي قشر او لکۍ له منځه ولاړ شي. په یاد باید ولرو چې د لرغوني خاورین لوښي پرمخ د اهکي قشر ضخامت د توجو وړ دی که چېرې د اهکي قشر ضخامت د لوښي پرمخ زیات وي په هغه صورت کې له یوې خوا باید لرغونی لوښی تر زیاته وخته په محلول کې وساتل شي او له بلې خوا باید د تېزابو [دمالګې د تېزاب] فیصدي لوړه کړو چې وکړای شي اهکي قشر په خپل ځان کې حل کړي، کله چې د اهکي قشر څخه د لرغوني خاورینت لوښي په پاکېدو مطمین شو بیا نو لرغونی لوښی د ګیرۍ یا دستګیر په وسیله له محلول څخه رابهروو په دې برخه کې باید زیات احتیاط وشي کله چې خاورین لوښی د تېزابو څخه وایستل شو باید هڅه وشي چې له تېزابو څخه پاك او له اوبو څخه وچ شي کله چې په پوره ډول لوښی له تېزابو څخه پاك او وچ شو له سره باید په روانو اوبو کې کېښودل شي چې هغه پخواني جدارونه او منفذونه چې په لوښي کې وو راڅرګند شي، دا وروستۍ پروسه د ډېرینو اثارو لپاره ضروري نه ده.

**دریم حالت** : که چېرې یو لرغوني خاورین لوښی په زیات ویجاړ شوي حالت کې لاس ته راشي د نوموړي خاورین لوښي بیاجوړونه او پاکېدنه زیاتې هڅې او هاند ته اړتیا لري.

لومړی باید دا خاورین لوښی په یوه مرطوب او نرم برس پاك شي او په دې ترڅ کې باید هڅه وشي چې د لوښي بهرنۍ رنګ ته زیان ونه رسېږي او یا لااقل د زیات تغیر مخنیوی وشي او د ټوټو د بیا پیوند په صورت کې باید پاملرنه وشي چې زیات مصنوعي او یا طبیعي کنډرې د لوښي پرمخ ښکاره نه شي که چېرې اړتیا لیدل کېږي باید د لوښي له دننه خوا څخه د سریښو له استعمال څخه کار واخیستل شي ددې ډول لوښو څخه د اهکي قشر له لریکولو لپاره د تمپانیکي څخه چې په تېزابو لړلې وي کار اخستل کېږي او دا عملیه یوازې د لاسپوښو په وسیله تر سره کېږي، که چېرې لرغوني خاورین لوښی په هغه اندازه

خراب او ویجاړ نه وي چې یوازې د اهکي قشر په وسیله پیوند شوی وي په هغه صورت کې باید لاندې عملیه په نظر کې ونیول شي: د لرغوني خاورین لوښي حالت ته باید پاملرنه وشي په داسې حالت کې چې دا لوښی زیات منفذونه لري او له ځمکنیو محلولونو څخه په زیاته اندازه مشبوع وي، په هغه صورت کې د رطوبت ژر ترژره لرې کول ښايي د نوموړي لوښي دله منځه تللو سبب وګرځي نو ځکه باید هڅه وشي چې د مالګینو محلولونو د لرې کولو زمینه برابره شي او یا د هغو منفذونو پرمخ پنبه کېښودل شي چې په ژلاتینو لړلي وي او همدا شان په سلو کې د پنځوسو په اندازه ګلیسرین دی هم ورسره ګډ شي، له دې سربیره خالص الکول هم ضروري وي چې یوه انتي سپتیك ماده [ضد مکروب] ځینې جوړېږي په دې ترتیب کیدی شي د رطوبت د لیرې کولو زمینه برابره شي.

وروسته له هغې چې دزیات ویجاړ شوي خاورین لوښي پر مخ د اهکي قشر د لرې کولو پروسه او عملیه پای ته ورسېدله لوښی د وچېدلو لپاره په یوه مخصوصه الماری کې چې زیات حرارت په کې موجود نه وي ایښودل کېږي د وچېدو لپاره کېدی شي له یوې داسې کوټې څخه هم کار واخستل شي چې سیوری په کې وي، او د لمر رڼا هغه ته ونه رسېږي او هم په ازاده هوا کې دا عملیه تر سره کېدلای شي که چېرې دا ډول لرغوني خاورین لوښي ته چې د وچېدلو لپاره تیارشوي وي د لمر وړانګې ورسېږي ښايي د دې لوښي بهرنی قشر ویجاړ اود هغې پرمخ درزونه راپیدا شي په هر صورت په مجموع کې د خاورینو لوښو د بیا جوړونې او ترمیم لپاره دوه لویې طریقې شته چې لومړی طریقه یې د خاورینو لوښو دسطحې بیاجوړول دي چې په دې دواړو طریقو کې له مصنوعي کنډرو [صمغ] څخه کار اخستل کېږي په دې ترتیب هغه خاورین لوښي چې د بیاجوړولو لړی یې وهلې ده د لرغونپوهانو لپاره هغه مناسب اثار چې باید وڅېړل شي او یا پر هغو باندې د علمي تحقیقاتو د یوازینی منبع او ماخذ اتکا وشي د ګڼې وړنه شي ګرځېدلای دا ډول اثار یوازې په موزیمونو کې د ننداري لپاره

اېښودل کېږي.
وروسته له هغه چې زيات ويجاړ شوي خاورين لوښي په الماريو کې چې د تودوخي درجه يې تر يوسل لسو درجو سانتي ګراده لړه وي وچ کړو دبياجوړوني او ټينګښت لپاره لاندې کمياوي موادوته اړتيا ليدل کېږي له ۳ څخه تر ۱۰ فيصده پورې مصنوعي کنډرې، لکه پولي بوتيرال، تيزاب لرونکي ميتاکربلايت،پولي وينيل بوتيرال،بنزول لرونکي الکول او قلوي، له دې موادو څخه دلرغوني خاورين لوښي په سطحې ټينګښت کې کاراخيستل کېږي او د يوه نرم برس په وسيله ورو ورود لوښي پرمخ کارول کېږي.
چې نوموړي مواد په کامله توګه په لوښي کې جذب شي او که چېرې په اساسي ډول د لوښي ټينګښت په نظر کې وي په هغه صورت کې ټول لوښي له نوموړو موادو څخه په جوړ شوي نسبتا غليظ محلول کې اېښودل کېږي [بايد پاملرنه وشي چې ددې ډول عمليې پر وخت د تودوخي درجه تر ۳۵ درجو زياته نه وي ځکه چې د اور اخستلو امکانات لري ]او پس له هغه چې مواد يې په خپل ځان کې جذب کړل بيرته ايستل کېږي او په نوموړي لوښي کې له بهرني او دننني خواو څخه د اضافي موادو لرې کولو پروسه هم بايد په زياتې پاملرنې سره تر سره شي، ځکه چې کېدی شي د لوښي کومه پارچه يا ټوټه بې ځايه شي په هغه صورت کې د دويم ځل لپاره د همدې پروسې تر سره کول زيات مفيد نه بريښي، په هر صورت کله چې د لوښي شا او مخ پاك شو بيا د نندارې لپاره د موزيم په ويترينونو کې اېښودل کېږي [۲۵:۴۶ ]
د خاورينو لوښو د بياجوړولو لپاره ضروري ده چې د هغه لوښي لړترلړه ۵۰ فيصده پارچې او يا د هغه دتنې برخې ولرو، د طبيعي جوړونې په پروسه کې د لوښي د جوړولو کار د لوښي اخرې برخې ته رسيږي لومړی د لوښي د خولې برخې پارچې د مېز پر يوه خوا اېښودل کېږي بيا د لوښي دمنځنی برخې پارچې د مېز پر بله برخه اېښودل کېږي او بيا د لوښي د وروستنی برخې [قاعده] پارچې د مېز پر بله برخه ځای پر ځای کېږي او په دې ترتيب د بياجوړولو کار دوام مومي

باید متوجه اوسو چې د خاورینو لوښو د جوړولو پروسه ډېره ورو او بطي وي. باید هڅه ونه کړو چې هغه په مصنوعي ډول سریع کړو، ځکه چې په سریع او چټك جوړولو کې د سهوې او غلطۍ امکانات زیات وي کله چې د لوښي له دریو برخوڅخه لویې پارچې یابلاکونه جوړ شول بیا نو [بلاکونه ] یا د لویو پارچو د [د درې لویو پارچو ]یو ځای کېدل تر سره کېږي چې باید په افقي ډول سره وصل شي .

**ج : د فلزي اثارو بیاجوړول** : د فلزي اثارو مرمت کاري له هغه اثر څخه د اوکسایدو قشر(زنګ) لرې کوي دا وظیفه هغه وخت ښه ترسره کېدلای شي چې تر مرمت کارۍ لاندې اثرواضیح وي یا په بله مانا پېژندل شوی وي چې د اکسایدونو [زنګونو]د منځته راتللو او د هغه اثر پرمخ د پاتې کېدلو زمانه او دوره یې څرګنده شي او د هغه زنګ خصلت او مقاومت وپېژندل شي، د بېلګې په توګه که چېرې د یوه فلزي اثر مخ ټول په اهکي یا زنګي قشر پوښلی وي او موږ ونه شو کړای چې په عادي توګه هغه وپېژنوپه هغه صورت کې ضروري ده چې له رادیوسکوپ څخه کار واخلو که چېرې په لابراتوار کې دا ډول رادیوسکوپ نه وکېدی شي چې له طبیعي رادیوسکوپ څخه د هغه اثر د پېژندلو په لاره کې استفاده وکړو، په هر صورت فلزي اثار د خپل حالت د پېژندلو له مخې پر څلورو کټه ګوریو وېشل کېږي:

**ښه یا ډاډمن حالت** : د فلزي اثارو ښه یا ډاډمن حالت هغه حالت ته وایي چې فلزي اثر یا [شی] مکمل روغ ساتل شوی وي، یوازې د یوه نازك اهکي قشر په وسیله پوښل شوی وي برونزي اثار چې ډاډمن حالت ولري هغه د یوه نازك جلالرونکي تاریك پوښ لرونکی وي

**دقناعت وړ حالت** : هغه حالت ته د قناعت وړ حالت ویلای شو چې د فلزي اثر یا [شي]اصلیت یا ذات مکمل جوړ وي خو بهرنی قشر یې د یوه ډبل یا پنډ زنګ [اکساید]په وسیله پوښل شوی وي.

**وران حالت** : وران حالت هغه حالت ته وایي چې فلزي اثر یا

(شی)

هغه ساختمان چې پخوایې درلود له منځه تللی وي فقط هسته یې سالمه پاتې وي نور ټول اثر د [اکساید] زنګ په وسیله یا له منځه تللی وي او یا داسې پوښل شوی وي چې اصلي شکل ته یې تغیر ورکړی وي .

**ویجاړ حالت** : دا حالت نو د فلزي اثر هغه حالت ښیي چې اثر یا [شی] په کلي ډول پر اکساید تبدیل شوی وي د داسې لرغوني فلزي اثر په بهرنۍ سطحه کې لوړې او ژورې[کړوپ شوي] ښکاري شکل یې تغیر شوی او جسامت یې زیات شوی وي .

د هغه اثر مرمت کاري چې په ډاډمن حالت کې تر لاسه شوي وي کېدی شي په مېخانیکي ډول[د لاس په وسیله] تر سره شي ټول هغه اضافي مواد او نازك زنګ چې د فلزي اثر پرمخ ښکاري باید دلاس په وسیله لرې کړو او که چېرې ځینې د زنګ علامې [اکساید] د[شي] پرمخ لاپاتې وي کېدلای شي هغه د رقیق تېزابي محلول په وسیله لرې کړو، وروسته له هغې چې د لرغوني فلزي اثر میخانیکي عملیات پای ته ورسېدل هغه باید په پاکو او مقطرو اوبو خو ځله ومینځل شي همدا پروسه پر هغو اثارو چې له برونزو څخه جوړ شوي وي د تطبیق وړ ده، د[شي]پرمخ د زنګ علامې د جراحۍ د چاقو او د فولادي ستنې په وسیله له منځه وړو، پر برونزي اثارو د اکساید یا زنګ ټولې علامې باید له منځه یوړل شي دا ځکه چې که ځینې علامې د اثر یا [شي]پرمخ پاتې شي بیاد اکساید کېدو پروسه په چټکۍ سره پرمخ ځي که هر څه یې د ساتلو لوري ته پاملرنه هم وشي بیا هم مفید نه تمامېږي، د برونزو لرغوني اثر تر مېخانیکي پاکېدو وروسته باید په ګرمو اوبو ښه ووینځل شي د هغه فلزي اثر لپاره چې په قناعت وړ حالت کې یا ویجاړ حالت کې ترلاسه شوي وي د مېخانیکي پاکارۍ تر څنګ د هغه اثر د پاك کارۍ او مرمت لپاره له دوو کیماوي برقي امکاناتو څخه کار واخلو په دې برخه کې لاندې مطالبو ته پاملرنه په کار ده .

۱ـ وروسته له هغه چې د اثر یا [شي] زنګ په زیات دقت د اوبو په وسیله ووینځل شي نوموړی اثر په یوه تشت کې چې په هغه کې پخوا له

پنځو څخه تر لسو فیصدو سودیم هایدرواکساید او پوتاشیم هایدرواکساید اچول شوي وي د لسو یا دولسو ساعتونو لپاره ایښودل کېږي وروسته له هغه باید لس فیصده تېزاب په ځانګړي توګه عضوي تیزابونه لکه د لیمو تېزاب، سرکه، او نوردې په تشت کې واچول شي، وروسته له هرو پنځلسو دقیقو فلزي اثر [شي]دی د نرم برس په وسیله په اوبو کې ووینځل شي د اوبو حد او اندازه باید هومره وټاکل شي چې د زنګ د مینځلو توان ولري دا عملیه تر هغو دوام کوي چې فلزي اثر یا [شي]مکمل له اکساید یا زنګ څخه خلاص شي، وروسته له هغې چې د پاکارۍ پروسه پای ته ورسېدله بیا فلزي اثر یا [شی] په یو بل تشت کې چې په هغه کې له پنځو څخه تر لسو فیصدو پوتاشیم هایدرواکساید یا سودیم هایدرواکساید محلول موجود وي غوټه کېږي تر څو د تېزابو خاصیت منحل او له منځه ولاړ شي، وروسته بیا اثر د ګرمو او تودو اوبو په وسیله مینځل کېږي او په ځانګړي المارۍ کې چې د حرارت درجه یې لږه وي ایښودل کېږي چې وچ شي، د یادونې وړ ده چې د فلزي اثارو د پاک کارۍ او مرمت لپاره له مېخانیکي، کیماوي، الکترونیکي لارو څخه کار اخیستل کېږي خو د عادي فلزي اثارو او نجیبه فلزي اثارو د پاک کارۍ او مرمت کارۍ میتودونه بېل دي چې د موضوع متخصصین یې د استعمال موارد پېژندلای شي.

**د: د عضوي اثارو بیاجوړونه**: د عضوي اثارو بیاجوړونه له نورو ډبرینو، فلزي، او خاورینو اثاروسره توپیر لري هغه عضوي اثار چې مرمت کار به ورسره مخامخ وي کېدلای شي چې له لرګي څخه جوړ شوي وي یا د حیواناتو له پوستکي او وړیو څخه یا هم له هډوکو څخه جوړشوي وي. عضوي اثار نسبت نورو اثارو ته له خپل چاپېریال څخه زیات متاثره کېږي که چاپېریال زیات لنده بل ولري پر عضوي موادو او اثارو یوډول تاثیرات ځرګندېږي او که بالمقابل وچ محیط هم وي بیا اثار په خپل وجود کې بل ډول تاثیرات لري خو په وچ محیط کې نسبت لنده بل ته د عضوي اثارو د پایښت او مقاومت حالت زیاتېږي په دې برخه کې به له لرګیو څخه دجوړ شویو لرغونو اثارو له بیاجوړونې او پاک کارۍ څخه د

بېلګې په توګه يادونه وکړو .

د هغو اثارو بياجوړونه او مقاوم کول ستونزمن کار دی، په زياتو مواردو کې ددې ډول اثارو پوره مرمت او بياجوړول د هغه اثر د زيات تحريف او بدلون سبب ګرځي، همدې کبله يوازې په ډېر ضروري حالت کې له لرګي څخه جوړشوي لرغوني اثار په کلي ډول ترميم او د بياجوړونې کار يې تر لاس لاندې نيول کېږي هغه لرغوني اثر چې له لرګيو څخه جوړ شوی وي، مرمت او بياجوړونه يې حتمي وګڼل شي، لرغونپوه څېړونکي يا د موزيم کارکوونکي بايد لاندې ټکوته پاملرنه ولري : د لرګي لرغوني اثر د ټاکلي حرارت په وجه [چې د بخار په وسيله منځ ته راځي ] د نرمېدلو لپاره مرطوب ساتل کېږي او په دې ترتيب له لرګي څخه جوړ شوی لرغونی اثر د تاوېدلو او انعطاف توان مومي خو په بدل کې د هغه مقاومت لږېږي [بايد زياته پاملرنه وشي چې لرغونی اثر مات نه شي ]وروسته له هغې چې د انعطاف توان يې وموند بيا په بل قالب يا هغه لرګي کې چې د قالب په ډول جوړ شوی وي ځای پر ځای کېږي او يا هم د دوو نورو لرګيو تر منځ چې خپل پخوانی شکل واخلي کلك ساتل کېږي په دې وخت کې بايد متوجه اوسو چې د لرغوني اثر پر ټولو برخو بايد فشار يو ډول وساتل شي دا چې د فشار حد او اندازه بايد څومره وي دا د څېړونکي او مرمت کوونکي صلاحيت دی ان که چېرې د فشار له وجې د دوو تختو تر منځ لرغونی اثر مات هم شي اجازه نه شته چې تر پوره وچېدو پورې هغه د تختو له منځه وباسي کله چې لرغونی شی وچ شو بيا يې د سرېښولو پروسه پيلېږي.

له لرګي څخه جوړ شوی لرغونی اثر بايد په ورو او کرارۍ سره وچېدو ته پرېښودل شي که نه بنايي د ژر وچېدو له وجې يا مات شي او يا هم عارضه پيدا کړي، يا په بله مانا درزونه پيدا کړي، که چېرې اثر انعطاف وموند په هغه صورت کې بايد د وچېدو پروسې ته لږترلږه څو شپې او څو ورځې منتظر پاته شو، په دې صورت کې بايد د اثر د مصونيت په خاطر ځينې محلولونه لکه انتي سپتيك ياد ندريالين په ټاکلې فيصدۍ سره لرغوني اثر ټول غوړ شي، څو د عارضي تکليف مخنيوی يې وشي. کله نا

کله له ځینو هغو اثارو چې له لرګیو څخه جوړ شوي وي د مصنوعـ کنډرو[صمغ] څخه په ګټه اخستنې سره د بیاجوړونې پروسه پرمخ بیایي، د ترمیم د کار په پای کې باید لرغونی اثر د مصنوعي کنډرو[صمغ]په وسیله سرېښ شي کله نا کله دا د یوې وسیلې په واسطه په منظمه توګه د لرغوني اثر پرمخ شیندي او ټولو برخو ته په مناسبه اندازه سرېښ رسېږي او کله نا کله لرغونی شی د سرېښو په یوه تشت کې غوټه کوي، په دې وروستۍ طریقه کې باید پاملرنه وکړو چې په هغه تشت کې چې سرېښ اېښودل شوی، باید تر دري فیصده پورې دیتول ماده هم ګډه شوې وي په داسې حال کې شی د څو ورځو لپاره په همدې محلول کې پرېښودل کېږي او دتشت سر هم باید تړلی پاتې شي وروسته له څو ورځو به ولیدل شي چې لرغوني شی هم د جسم او هم د رنګ له مخې توپیر پیدا کړی، په دې صورت کې پوهېدلای شو چې اوس نو دا لرغونی اثر له محلول څخه مشبوع شوی دی او دا حالت د بیاجوړونې د کار پای هم دی.

دا لرغونی اثر چې اوس نسبتا دروند شوی او له بلې خوا یې خپل لازم مقاومت هم له لاسه ورکړی دی په زیات احتیاط باید له محلول څخه راواېستل شي ددې لپاره چې د لرغوني اثر اضافي مواد او د محلول اضافي اندازه لرې شي بیا هم باید متوجه اوسو چې د لرغوني اثر د وچېدو پروسه قصدا ګړندۍ نه شي یا په بله مانا داسې هڅه ونه شي چې اثر دې ژر ترژره وچ شي باید په طبیعي ډول د وچېدو پروسې ته منتظر پاتې شو، پخوا تر دې چې اثر مکمل وچ شي باید دوامداره مراقبت یې وکړای شي هغه اضافي توکي او له محلول څخه پاتې شوني چې د اثر پرمخ لیدل کېږي په ډېر احتیاط باید لرې او اثر پاك وساتل شي.

# پنځم څپرکی

## دلرغونو اثارو تحلیل او کره کتنه

لرغونپوهنه د یوه بېل او مستقل علم په څېر خپل ځان ته د څېړنې ساحه او هدف ته د رسېدلو ډاډمن میتودونه لري لرغونپوهان هڅه کوي چې له پخواني انسان او انساني ډلو څخه راپاتې شوي مادي اثار چې په حقیقت کې د لرغونپوهنې منابع دي د ساحوي څېړنو او سپړنو له لارې څرګند او تر لاسه کړي او بیا همدا مادي اثار داسې چې هر یویې د یوې پېښې او یوه بدلون شاهد وګرځي، له لرغونو سیمو څخه لاس ته راغلي اثار کټ مټ هغه بیان نه دی چې لرغونپوهان یې د خپلو علمي څېړنو د نتیجې په توګه د مینه والو په واك کې ورکوي، بلکې له نوموړو اثارو څخه د منابعو په توګه د پخوانیو انساني ډلو د ښه پېژندلو لپاره ګټه اخلي له هر اړخیزې څېړنې او کره کتنې څخه وروسته لرغونپوهان د پخوانیو انساني ټولنو د راپېژندلو هڅه کوي لکه چې د لرغونپوهانو

څېړنیزې لارې او د لرغونو سیمو د سپړلو چارې له نورو ورته ټولنیزو علومو سره بېل والی لري، د لرغونو اثارو تحلیل او کره کتنه هم خپل ځان ته خاص اصول او موازین لري چې له هغو میتودونو او پرنسیپونو څخه په کار اخستلو سره لرغونپوهان کولای شي خپلو اهدافو او هیلوته په منطقي او علمي ډول ځان ورسوي. د لرغونو اثارو د تحلیل او کره کتنې د اصولو منځ ته راتګ د لرغونپوهانو د پرله پسې عملي هڅو او زیار نتیجه ده، په هره اندازه چې لرغونپوهنې د یوه خپلواك دسپلین په څېر پراختیا موندلې په هماغه تناسب د لرغونو اثارو د تحلیل او کره کتنې اصولو وده کړې او بډای شوی دی، اوس د لرغونپوهانو له خوا د لرغونو اثارو تحلیل او کره کتنې داسې ډاډمنې لارې او میتودونه منځته راغلي چې له هغو څخه په ګټه اخستنې سره په پوره سوکالۍ د پخواني انسان او پخوانیو انساني ټولنو د ژوند هراړخیز بیان او تصویر تر لاسه کولای شو په دې برخه کې په لنډه توګه ددې میتودونو او طریقو یادونه کوو:

## الف : د لرغوني اثر د شکل تحلیل او کره کتنه :

ټول هغه لرغوني اثار چې د انسان په لاس جوړ شوي انساني صنعت بلل کېږي، لرغوني انساني صنعت په حقیقت کې د لرغونو انسانانو د افکارو فوسیل هم دی، خاورین لوښي تبر، ستن، غشی، لیندۍ، له لرګیو څخه جوړ شوي لوښي او نور موږ ته د پخوانیو انسانانو هغه مفکورې او ذهني تصورونه برملا کوي چې نوموړو انسانانو یې د جوړولو پر وخت فکر کاوه یا په بله مانا ددې لرغونو صنایعو مولدین چې د یوې وسیلې د جوړولو کومه نظریه درلوده چې دا وسیله باید څه ډول شکل ولري د هغې نظریې انعکاس موږ په هماغه وسیله او اثر کې لیدلای او څرګندولای شو، په هر کلتور او فرهنګ کې ځینې داسې قراردادي دستورونه شته چې د انساني صنعت شکل ښکاره کوي، په لرغونو اثارو کې د شکلونو او څېرو د دېکته او تعمیل حالت هغه ذهني تصور په ډاګه کوي چې په هماغه ټولنه او یا انساني ډله کې یې عمومیت درلود. د یوه شي د جوړولو پر وخت له جوړونکي سره د هغه شي یو مناسب شکل او څېره د هغه په ذهن کې موجود وي. خو کله چې دا ذهني تصور په یوه خامه ماده

کې عیني بڼه پیدا کړي یو داسې صنعت منځ ته راځي چې د یوه شي د جوړېدلو ایده [مفکوره] هغه ذهني تصور دی چې جوړونکی [کارګر یا صنعت کار] د هغه پر اساس او د هغه ذهني تصور پر بنیاد خپل پاموړ شی جوړوي او منځته یې راوړي یا په بله مانا خپلې ایدې یا مفکورې ته مادي څېره ورکوي. د لرغونو اثارو په څېرو کې بېل والی او تنوع په حقیقت کې په ذهني تصوراتو او مفکوروکې بېل والی په ګوته کوي هغه مفکورې ته چې پر یوه عیني شکل بدلېږي او یو صنعت منځته راځي په هماغه شکل او څېره د جوړوني [مولد] عقیده او توقع ده نو ځکه د خپل لاس محصول ته یې داسې یا هغسې یوه څېره او بیا رنګ ورکړی دی. تر کومه ځایه چې روښانه ده د صنایعو د اشکالو او څېرو معین حالت له یوه نسل څخه بل نسل ته انتقالېږي.

پر همدې اساس د هغه فرهنګ او کلتور خلکو ته په هماغه څېره او رنګ سره د هغه صنعت ذاتي ورتوب درستوالی او سوچه توب د یوې عنعنې په توګه راڅرګندېږي، له دې سربېره نور عوامل هم شته چې د لاسي صنایعو د څېرو او شکلو پر بېلوالي او تنوع باندې تاثیر کوي .

کله کله د لرغونو ورته او مشابه اثارو تر منځ توپیرونه او تفاوتونه لیدل کېږي چې دا ډول سطحي بېل والی او توپیر د جوړونکي په ذهني تصور پورې اړه نه لري، بلکې بهرني عوامل دي چې د یوه [شي]په جوړولو کې محدودیتونه منځته راولي او نوموړی [شي] ته متفاوته څېره او بېل شکل ورکوي، د بېلګې په توګه د یوه غشي جوړول چې د یوه تن جوړونکي [مولد]له خوا جوړشوی وي حتمي نه ده چې ټول غشي دې دهماغه اولني غشي په څېره وي خو د غشي د عمومي ساختمان په حدودو کې زیات بدلون نه لیدل کېږي، د لاسي صنایعو تکنالوژي کولای شو پر دوو ګروپونو ووېشو: لومړی ګروپ تفریقي تکنالوژي {Subtractive class} او دویم ګروپ تجمعي تکنالوژي {Additive class} ده. لومړی ګروپ تکنالوژي [تفریقي] د یوې وسیلې تر جوړېدلو پورې د خامو موادو جدایي اوبېل والی دی یا په بله مانا د یوه ډبرین غشي جوړونکی تر هغه وخته یوه ډبره توږي چې له خپل ذهني تصور سره برابر یو ډبرین غشی

جوړ کړي په دې ترتیب جوړونکی د یوې نسبتا لویې ډېرې څخه وړوکی غشی استحصالوي دویم ګروپ تکنالوژي [تجمعي ]د یوې وسیلې تر جوړېدلو پورې د خامو موادو زیاتوالی دی یا په بله مانا جوړونکی تر هغه وخته پورې خام مواد یو پربل زیاتوي چې د هغه جوړونکي له غوښتنې سره سم موافق شی لاس ته ورشي د بېلګې په توګه د یوه خاورین لوښي په جوړولو کې تر هغه وخته لندې ختې زیاتېږي چې له ذهني تصویر سره برابر خاورین لوښی تولید او لاس ته راشي په دې ترتیب دې دوه ډوله تکنالوژیو ته له مرکز څخه د لرې والي {Centrifugal} پروسه او مرکز ته د نږدالي {Centripetel} پروسه هم ویلای شو، په هر صورت له دې لنډې یادونې څخه دا پوښتنه را پورته کېږي چې د لرغونو اثارو د شکل تحلیل او کره کتنې یاد شوی مطلب د لرغونپوهنې کومو پرابلمونو ته ځواب ویلای شي ؟ لکه چې وویل شول، لرغونپوه څېړونکی د هغو اثارو له پېژندلو سره کوم چې د سپړنې پر وخت یې تر لاسه کړي دي، مینه لري ځکه چې د پخوانیو انساني ټولنو د ښه پېژندلو په برخه کې ورسره مرستندوی ګرځي، په دې ډول لرغونپوه څېړونکي ته په زړه پورې ده پوه شي چې له دې لرغوني سیمې څخه لاس ته راغلي اثار او لاسي صنایع ولې یو له بل څخه توپیر او بېلوالی لري په څه ډول کولای شي نوموړي اثار د شکل او څېرې له مخې تصنیف او کته ګوري کړي.

له لوستل شویو مطالبو څخه څرګنده شوه چې د لرغونو اثارو په شکلونو او څېرو کې تنوع یوه پېچلې موضوع ده او ددې تنوع او بېل والي ځینو عواملو ته مو ګوته ونیوله په لرغونو اثارو کې هغه تنوع او بېل والی چې تصور څرګندوي د هغو اثارو د جوړونکو د مسلط کلتور له پوره روښانه کولو سره مرسته کوي په داسې حال کې چې ښایي د تکنالوژیکي پرابلمونو پر اساس منځ ته راغلی بېل والی او تنوع له کلتوري بیا جوړونې سره اړیکې ونه لري .

## ب : د لرغوني اثر زماني او مکاني تحلیل او کره کتنه :

د یوه لرغوني اثر زماني مکاني تحلیل په هماغه کچه لرغونپوه ته د ارزښت وړ دی چې د یوه لرغوني اثر شکلي تحلیل او کره کتنه ورته

ارزښت لري د لرغونو اثارو مکاني اړخ د هغو لرغونو اثارو په موقعیت پورې اړه لري چې د لرغوني محل په محوطه او یا دننه کې یې ځای نیولی دی او د لرغونو اثارو زماني بعد د نورو اثارو تر څنګ دیولړ طریقو او میتودونو په وسیله چې په ورستیو کې به په تفصیل سره پرې بحث وشي ټاکل کیږي د لرغونپوهانو په نظریاتو او افادو کې د زمان او مکان مفاهیم چې د لرغونو اثارو دوه ارزښتمن اړخونه دي د یوې هندسي مقطع په ډول توضیح کېږي کېدی شي دا هندسي مقطع د یوه مکعب په شکل وپېژندل شي چې د نوموړي مکعب اوږدوالی او پراخوالی څرګندوي او د مکعب ژوروالی [عمق]د لرغوني اثر د زمان بعد راپه ګوته کړي، په دې ډول چې د مکعب لاندینۍ برخه [قاعده]ډېره پخوانۍ زمانه او د مکعب لوړه برخه د نوې زمانې څرګندونه کوي، ددې مثال د لا روښانتیا لپاره به یو مثال راوړو.

که داسې فرض کړو چې پر ۱۴۰۰ میلادي کال د یوه مفرغي تبر پرمختللې تیپ په یوه کلي کې منځته راغلی ددې تبر له ګټې او خوندونو څخه په ډېره لنډه موده کې د نورو کلیو اوسېدونکي خبرشول او وپوهېدل او د هماغه ډول تبر پر جوړولو یې لاس پورې کړ کله چې ددې ډول [تیپ] تبر جوړولو پوهه د نورو کلیو په منځ کې خپرېږي نو د زیاتو او لري کلیو اوسېدونکي هم د همدې ډول تبر خاوندان ګرځي که وغواړو چې ددې ډول تیپ تبر توزیع او پراختیا په یوه هندسي شکل کې ترسیم کړو یو داسې دایروي شکل به جوړ شي چې د دایرو قطر به د زمانې په تېرېدو سره زیاتوالی ومومي لس میله پر ۱۴۱۰ میلادي کال، شل میله پر ۱۴۲۰ میلادي کال، دېرش میلو پر ۱۴۳۰ میلادي کال او دا قطر به له ۱۴۵۰ میلادي کال سره ۵۰ میلو ته ورسېږي چې له نوموړي ډول تبر څخه یې ګټه اخستې وه، هغه هندسي شکل چې د نوموړي تبر د توزیع او پراختیا په اړه ترسیم شوی دی په هره زماني لحظه کې چې نوموړی ډول تبر جوړ شوی دی دایروي شکل لري خو په زماني او مکاني بهیر کې نوموړی شکل د هندسي هرم څېره ځانته اخلي په هغه اندازه چې د نوموړي تبر څخه د کار اخستنې ساحه پراخېږي په هماغه اندازه زمانه

تېرېږي په دې ترتيب په هره اندازه چې د مکعب راس ته رارسېږو او يا رانږدې کېږو په هماغه اندازه به د دايرو قطرونه پراخ،وِ زيات شي او په دې ترتيب به نسبت پخوانيو دايرو ته لويې دايرې ترسيم شيَ [شکل : ۱ ]



که چېرې ددې نوي صنعت [تبر]د پراختیا د تمثیل لپاره د هرم هندسي شکل ترتیب کړو په طبیعي ډول به ددې هرم شکل مناسب او موزون نه وي دا ځکه چې بېلابېل عوامل د هرم په شکل باندې تاثیر لري، د بېلګې په توګه په نویو ټولنو کې دنوي صنعت [تبر] نه منل جغرافیایي موانع د نوي صنعت د انتقال پر وړاندې د نوي صنعت د جوړولو پوهه له یوه کلي څخه بل ته او داسې نور عوامل چې د هرم په شکل کې کنډوکپر راځرګندوي. پورتنی بحث دې پوښتنې ته ځواب وایي چې له دې ډول معلوماتو څخه څه تر لاسه کېږي ؟ لرغونپوهان ددې ډول معلوماتو له حاصلولو څخه یو لړ نتیجې ترلاسه کوي چې د لرغونو اثارو زماني او مکاني تحلیل او همدا شان په هغو ټولنو کې د نوي صنعت د پراختیا زمینې او ذ هغو په اړه ډاډمنې پایلې تر لاسه کوي.

## ج : د لرغونو اثارو سیاقي تحلیل او کره کتنه :

د لرغونو اثارو پر سیاقي اړخ پوهېدل په حقیقت کې پر هغو معلوماتو پوهېدل دي چې د پخوانیو انسانانو په منځ کې د اثر یا اثارو سلوك وو، یا په بله مانا د لرغونو اثارو پر سیاقي اړخ پوهېدل د هغو اثارو د سلوك په بېلابېلو اړخونو پوهېدل دي چې دا لرغونی اثر له کوم ماحول او محیط

ځخه لاس ته راغلي وي د هغه ماحول ټول مرکب عناصر هغه شواهد دي چې د اثارو تر منځ اړیکې او د هغو انساني ډلو چې په نوموړې لرغونې سیمه کې اوسېدلي دي د هغو د سلوك په اړه لاژم معلومات د مینه والو په واك کې ورکولای شي.

دلرغوني سیمې د سپړنې په وخت او ځای کې د معین نظم او دقیق سیستم چې د سپړنو قوانین یې ایجابوي ایجادېدل[ د لرغونې سیمې پر مربعاتو وېشل، نوم ایښودنه،په احتیاط دسیمې د نقشې ترسیم،دساختماني نقطو تثبیت او تشخیص، دکلتوري طبقو بېلوالی.او نور] ټول هغه تخنیکي میتودونه دي چې د لرغونپوهنې په ساحوي تحقیقاتو کې ورځخه ګټه اخستل کېږي دا ټولې هڅې ددې لپاره ترسره کېږي چې لرغونپوه څېړونکي ته دپه لاس راغلو اثارو ترمنځ اړیکي او پیوندونه ځرګند شي.

له ځینو لرغونو سیمو ځخه دا ډول اثار لاس ته راغلي دي چې په اسانتیا سره د هغوی د سیاق استنباط تر لاسه کولای شو، د بېلګې په توګه که چېرې په یوه قبر کې د یوه حیوان [هغه هډوکي چې غوښه یې خوړل شوي وي] هډوکي د انسان له اسکلیت سره یو ځای تر لاسه شي کېدی شي داسې استنباط وشي چې کوم وخت چې د همدې انسان مړی په قبر کې ایښودل شوی دی پر هماغه وخت کې د همدې حیوان د بدن هماغه برخه چې هډوکي یې پاتې دي ایښودل شوې ده لکه چې ځرګنده ده په ځینو پخواني انساني ډلو او ټولنو کې داسې عادت او عنعنه جاري وه چې د خپلو مړو سره به یې یو ځای د اوبو په شمول ځینې خوراکي مواد لکه غوښې،ډوډۍ،او نور په قبر کې ایښودل چې د هغو مړشوی دوست ورځخه استفاده وکړي او یا دا چې په ځینو لرغونو سیمو کې تر څېړنو وروسته یو شمېر غشي او لیندۍ او د ښکار ځینې وسایل او اوزار تر لاسه کېږي او د لرغوني سیمې موقعیت هم دا ښیي چې نوموړې سیمه په یو وخت کې پرتګا یا د ښکارشویو حیواناتو د وژلو او ویشلو ځای و په هغه صورت کې په اسانتیا سره د نوموړو وسایلو د سیاق او سلوك زمینې استنباط کېدی شي چې دا غشي او د ښکار وسایل د هغه

حیواناتو د ښکار کولو لپاره کارول شوي دي.

د هغو لرغونو اثارو سیاقي او سلوکي اړخ درکول اوپرې پوهېدل څه ناڅه د ستونزو سره ملګرې دي چې بېل او استثنایي حالت ولري، د بېلګې په توګه که چېرې په یوه پراخه لرغونې سیمه کې یو زیات شمېر هاونونه[اوغورها] چې وزن یې زیات او له ډېرې کلکې ډبرې څخه جوړ شوې وي لاس ته راشي په دې صورت کې د هاونونو د سیاق او سلوك زمینې پیدا کول ستونزمن کار دی، خو ناممکن کار نه دی کېدی شي چې د داسې اثارو د سیاقي او سلوکي اړخ په پوهېدو کې به له یو شمېر مشکلاتوسره مخامخ شو.

ددې بېلګې په اړه باید هغه زمینې ولټول شي چې له دې هاونونو څخه ګټه اخستنه او دهغو د استعمال موارد څه وو او په کومو حالاتو کې له دې هاونونو څخه کار اخستل شوی دی، باید هغه پخوانۍ انساني ډلې او ټولنې چې دا ډول هاونونه به یې جوړول او کارول یې وپېژندل شي. ښايي ددې ډول هاونونو جوړونکي کډوالې انساني ټولنې وې چې د ځینو لویو ځنګلونو پر غاړه یې دا ډول هاونونه جوړ کړي دي چې د ځنګلي ونو مېوې د همدې هاونونو په وسیله میده کړي او بیا یې د خوراك لپاره وکاروي، په هر ډول په دې برخه کې لرغونپوهان هڅه کوي د بېلابېلو علومود پوهانو په مرسته خپلې مسلکي او څېړنیزې ستونزې حل کړي، په خاصه توګه د لرغونو اثارو پر سیاقي یا سلوکي اړخ پوهېدل د لرغونپوه څېړونکي لپاره د زیات ارزښت وړ ټکی دی.

د: د لرغونو اثارو د نقش تحلیل او کره کتنه :

د لرغونو اثارو نقش [چلند] د لاسي صنایعو له څو اړخونو څخه یو بعد او لوری دی ښايي یو لاسي صنعت څو نقشونه او رولونه تر سره کړي. دا مساله د زیاتې پاملرنې وړ ده په دې مانا چې یو لاسي صنعت ممکن په یوه کلتور کې یو ډول نقش ولري او په بل کلتور کې بل ډول نقش ولري. ددې مطلب مانا دا نه ده چې د لرغونو اثارود نقش او کړنې، ښودنه او پېژندنه ممکن کار نه دی، بلکې د زیات دقت او توجه غوښتنه کوي چې د یوه لرغوني اثر دقیق او روښانه او هغه عیني نقش چې د پخوانیو

انساني ټولنو په منځ کې يې ترسره کړې دي رابرسېره کړې شي.
که چېرې يو شمېر لاسي صنايع لکه خاورين لوښي ،ديګ،يوه جوړه تسبېح،يوه ګوته،يولاکيت، څو داني شمع داني،يو تيوپ او داسې نور شيان د دوو پېړيو لپاره تر خاورو لاندې کړو او تر همدې زمانې واټن تېرولو وروسته يې بېرته له خاورو راوسپړو په هغه حالت کې د نوموړو لاسي صنايعو پېژندنه د شکل له مخې ساده او اسانه کار دی ولې د يوه لرغونپوه څېړونکي لپاره دا ډول چې په يوه ځای کې تر سپړنو وروسته لاس ته ورشي په دقت سره د هغو د ټولو مرکبه عناصرو نقش او رول څرګندول زيات پېچلي او له ربړو سره ملګری دی، د لرغونو اثارو د نقش او رول څرګندولو په برخه کې يوه بله لاره هم شته چې د هغې کړنلارې په وسيله کېدی شي د لرغونو اثارو نقش او رول په ډاګه کړو، چې دې طريقې ته تجربوي تقليد وايي دا طريقه د لرغونو اثارو د بيا کارولو او يا د لرغونو اثارو د بيا مناسب او مساعد استعمالېدلو په ډول ترسره کېږي، په دې طريقه کې بايد هڅه وشي چې هغه لرغوني اثر چې د نقش پيدا کولو لپاره په نظر کې نيول شوی دی په هماغه ډول سره وکارول شي چې پخوانيو انسانانو ورڅخه کار اخستی دی، له دې طريقې څخه ګټه اخستنه په هغه صورت کې ګټوره واقع کېږي چې تر څېړنې لاندې اثرد شا وخوا ټولو اثارو او شيانو سره تشريح او توضيح شوې وي، دا په دې مانا چې که چېرې يو ډبرين لرغوني اثر د يوې چړې شکل ولري ددې ډبرين اثر د کارولو لپاره بېلابېلې زمينې شته، کېدی شي دا اثر د يوې داسې وسيلې په توګه بيا وکارول شي چې دنده يې د حيواناتو د پوستکو پرېکول وي او هم کېدی شي دا لرغوني ډبرين اثر د يوې داسې وسيلې په توګه وکارول شي چې د هغې په واسطه يو لرګی وتورل شي او همدا شان کېدی شي چې له نوموړې ډبرينې وسيلې څخه د انسانانو د دفاع او يا تعرض د وسلې په توګه کاراخستل شوې وي او هم کېدی شي د يوه معتبر او متبرک ډبرين چاقو په حيث د خپلې زمانې شيخ او صوفي، د روحاني وسلې او رواني پرابلمونو د حل لپاره کارولې وي.
ددې لپاره چې دا ډبرين اثر مو په هماغه ډول کارولی وي، چې د

خپلې زمانې انسانانو نه هغه تخه کار اخیست لازمه ده چې ددې اثر ټول شاوخوا اثار وپېژنو چې د هغوی دنده څه ده؟ او په څه ډول کارول شوي دي، په دې ترتیب کېدی شي هره په لاس راغلې وسیله په هماغه ډول بیا وکارول شي چې پخوایې د کارونې موارد وو د یادونې وړ ده چې په قیاسي او تقلیدي توګه د لرغونو اثارو د نقش تاکل یو لوړ خطرونه هم لري بنایي لرغونپوه څېړونکی منحرف کړي په هر ډول پوره دقت ته اړتیا شته په دې برخه کې هغه ټکي ته یادونې وړ ده کله چې لرغونپوهان د اثر په نقش پوه نه شول بیایې ویې په دیني ساسکو پورې اړه لري.

# شپږم څپرکی

## د لرغونو اثارو د تاریخ ټاکنې میتودونه

د لرغونپوهانو لپاره یوه اساسي پوښتنه د لرغونو اثارو د دورو ټاکل دي کله چې لرغوني اثار په هراړخیزه توګه وڅېړل شي لازمي او منطقي نتیجې ترلاسه شي بیا دا پوښتنه راپیدا کېږي چې نوموړي اثار د انساني تاریخ په کومو دورو او زمانو کې د ګټې وړ ګرځېدلي دي؟ د ځمکې پرمخ د لومړنیو انساني ټولنو څه ناڅه دوه نیم میلونه کاله بخوا زمانو ته رسېږي [۳۴:۱۱۲]

هغه لرغوني اثار او وسایل چې له لرغونو سیمو او پخوانیو انساني ټاټوبو څخه ترلاسه کېږي د انسان د اوږده تاریخ په کومې دورې پورې اړه لري ؟ دا هغه پوښتنه ده چې د لرغونپوهانو پر وړاندې د هر لرغوني اثر

او لرغوني سيمې د ښه پېژندلو لپاره مطرح کېږي .

لرغونپوهانو ددې ډول پوښتنو د حل په منظور زياتې علمي هلې ځلې کړي دي ترڅو داسې علمي میتودونه راپیدا کړي چې د لرغونو اثارو د تاریخ ټاکنې ميتودونه پر دوو برخو وېشلي وي، لومړۍ برخه هغه میتودونه دي چې په نسبي ډول د لرغونو اثارو د تاريخ څرګندونه کولی شي. د بېلګې په توګه د ستراتیګرافي تیپولوژۍ سریشن او نور یادولی شو {Staartigrafie} ستراتيګرافي يا د لرغوني محل د کلتوري طبقو بيان چې د پرنسيپ له مخې لاندې طبقه پخوانۍ، او پورتنۍ طبقه ځوانه يا اوسنۍ طبقه ده، تيپولوژي {Typollogie} د تزيني او توليدي وسايلو د فورم او شکل وده او تکامل د لاسي صنايعو {Art facten} او تخنيکي محصولاتو ادامه په طبيعي ډول د ودې لين او مسير راپېژني، په پرله پسې توګه يو تر بل پرمختللي وسايل د تيپولوژيکي مقايسې ښه امکانات ورکولای شي چې په اسانۍ سره دنسبي تاريخ د بيان حکم برابر کړي [۳۴: ۲۲۳ ]

او سريشن يا {Seriate} هم د نسبي تاريخ حکم ټاکنې يو ميتود دی چې د وسايلو د کټه ګوريو او ټيپونو په تعويض او دخلکو په منځ کې د هغه تعميم او پراختيا کولای شي چې د لرغونو اثارو په نسبي تاريخ ټاکنې کې مرستندوی شي [۳۴: ۸۴: ۲]په دې برخه کې د بېلګې په توګه د ستراتيګرافي نسبي تاريخ ټاکنې ميتود تر بحث لاندې نيسو.

## الف : د تاريخ ټاکنې نسبي ميتودونه :

ستراتيګرافي {Stratigrfie} په اصل کې جيولوجيکي اصطلاح ده چې د دوو کلمو {Strata} د ځمکې قشر يا طبقه او {Grafie} د ترسيم يا ليکنې په مانا کارول شوې ده، [۳۴: ۱۲۹ ] چې په پښتو کې د لرغونو طبقو پېژندنې په اصطلاح معمول شوې ده، لرغونپوهانو د خپلو علمي څېړنو په بهير کې يو لړ داسې لرغوني سيمې راسپړلي چې په پرله پسې توګه د پخوانيو انساني ډلو او ټولنو په وسيله اشغال او د ګټې ور ګرځېدلي دي، په دې ډول لرغونو سيمو کې د زياتو کلتوري طبقو د شته والي امکانات موجود وي چې هره کلتوري طبقه د پخوانيو انساني ټولنو د يوې خاصې

کلتوري دوري نماينده ګي کوي. يا په بله مانا ستراتيګرافي په يوه لرغونې سيمه کې د کلتوري طبقو تشريح ده. د همدې ميتود په وسيله کېدی شي هغه کلتوري طبقې چې په لرغونې سيمې کې له سپړنې وروسته لاس ته راځي تشريح او بيان کړو.

لرغونپوهان هڅه کوي چې يوه لرغونې سيمه د يوه دقيق سپړنيز پلان په محدوده کې تر څېړنې لاندې ونيسي. په لرغونو سيمو کې د لرغونپوهانو څېړنې له هغې لرغونې سيمې سره په تلقين کې ترسره کېږي ځينې داسې لرغونې سيمې د لرغونپوهانو پاملرنه ځان ته اړوي چې د موقعيت له مخې ډېر وړوکې او د لوړوالي اندازه يې نسبتا زياته وي کله هم داسې لرغونې سيمې تر څېړنې لاندې نيسي چې لوړوالی يې لږ او ارتوالی او سوريې زيات وي کله نا کله هم يوه مغاره او يا نور د سپړنې ځايونه تر څېړنې لاندې نيسي په هر ډول لرغونپوهان هڅه کوي چې د هرې لرغونې سيمې او يا محل په تناسب او وړتيا سره د نوموړو سيمو د سپړنې پلان ترتيب او عملي کړي.

د لرغونو سيمو د منظمو سپړنو په منظور معمولا دوه ډوله هڅې د لرغونپوهانو له خوا عملي کېږي، که چېرې د لرغونپوهانو هيله دا وي چې د يوه لرغوني محل په اړه د يوه معين کلتور د پراختيا ښودنه او څرګندونه کړي په هغه صورت کې لرغونپوه څېړونکی.

ترڅېړنې لاندې ساحه په افقي ډول تر سپړنې لاندې نيسي. چې وکولای شي د هغه کلتور هر اړخيزه پراختيا او وسعت د محل په سپړنو کې (افقي) پيدا کړي که چېرې د لرغونپوه څېړونکی هيله د هغه لرغونې سيمې له سپړلو څخه دهغه محل او لرغونتوب روښانه کول وي ،په هغه صورت کې عمودي سپړنې عملي کوي چې وکولای شي ددې طريقې په وسيله د نوموړې لرغوني محل او يا سيمې لرغونتوب او قدامت روښانه کړي (۹، ۳۷) ( ش : ۲ )




دساحي د پوره روښانتیا لپاره لازمه ده چې پورتنۍ شکل په پوره پاملرنې سره ولیدل شي.

یوه لرغونې غونډۍ په نظر کې نیسو چې د یوه معین پلان له مخې سپړل کېږي ددې لرغونې غونډۍ په افقي سپړنو کې څېړونکی خپلې هڅې داډول تنظیموي چې د غونډۍ د پورتنۍ سطحې یوکلتوري قشر یا طبقه د هغې له پیل څخه بیا د طبقې تر پای ته رسېدلو پورې سپړي چې یوه شي په دې کلتوري طبقه کې کوم عناصر شامل شوي دي، او د کومو پخوانیو کلتوري عناصرو د له منځه تللو وروستنۍ لحظې لیدل کېږي، چې وروسته بیادویمه طبقه په هماغه ډول تر سپړنې لاندې نیسي او په دې ترتیب خپلې سپړنې په ټاکلې ځای کې تر وروستۍ کلتوري طبقې پورې پرمخ بیایي.

په عمودي سپړنو کې د لرغونپوهانو زياته پاملرنه دي ټکي ته راګرځي چې دنوموړي لرغوني سيمي او محل تاريخي قدامت اولرغونتوب څرګند کړي. په دې ډول سپړنوکې يا بېلګه يي (نمونه يي) ساحه په عمودي ډول سپړل کېږي اوهم د محل او سيمې په تناسب يو کوهي يا څاه سپړي اوکلتوري لرغوني طبقي يوپه بل پسې په پوره دقت رابرسېره کوي. که بياهم نوموړي شکل په نظر کې ونيسو اودعمودي سپړنو طريقه عملي شي . په روښانه توګه به څرګنده شي چې د نوموړې لرغونې غونډۍ په باندنۍ يا لومړنۍ کلتوري طبقه کې د زمانې په لحاظ نوي وسايلو او اثارو ځاى نيولى دى، نسبت هغواثارو او وسايلو ته چې د همدې لرغوني غونډۍ له وروستۍ يا درېمې طبقې څخه لاس ته راغلي دي (۱ : ۲۵)يا په بله مانا دنوموړې لرغونې طبقې پورتنۍ يا لومړنۍ طبقه تر ټولو ځوانه کلتوري طبقه ده او تر ټولو طبقو معاصر او پرمختللى اثار له ځان سره لري. په داسې حال کې چې د همدې غونډۍ وروستۍ طبقه يا درېمه طبقه تر ټولو پخواني او زاړه اثار لري.

په دې ډول د ستراتيګرافي يا کلتوري طبقو د پېژندلو په وسيله کولاى شو چې په نسبي ډول د لرغونو اثارو قدامت او لرغونتوب يو د بل په نسبت څرګند او تر لاسه کړو. پورتنۍ طبقه نسبت لاندې طبقې ته ځوانه ده .طبيعي ده چې کلتوري طبقه ځوانه وي، داثارو له طبقې څخه لاس ته راغلي توکي هم د هماغو اثارو په نسبت چې په وروستۍ کلتوري طبقه کې يې ځاى نيولى دى زموږ زمانې ته رانږدې دي. په هر صورت داثارو په منځ کې د نسبتي تاريخ ټاکنې د ستراتيګرافي ميتود تر څنګ د ستريشن، او تيپولوژي ميتودونه هم شته چې د بحث د لنډولو په خاطر له دې دوونورو ميتودونو څخه تېرېږو.

## ب: د لرغونواثارود تاريخ ټاکنې مطلق ميتودونه:

لرغونپوهانو زيارايستلى چې د لرغونو اثارو د تاريخ ټاکنې علمي

اودقیق میتودونه دنړړو مرستندویو علومو پـه ملګرتیا اختراع او کشف کړي. پـه دې بـهیر کـې یې یوشمېر میتودونـه چې پـه مطلق ډول سره د لرغونو اثارو تاریخ ښودلای شي، طرح کړي او کـارولي دي، د بېلګې پـه تـوګه د کـاربن۱۴ میتود ،اپـالیومګنیتي میتـود ،اندروکرولوجـي میتـود اونور. له دې میتودونو څخه د ګټې اخستنې پـه صورت کې یوه اساسي پوښتنـه چې ایا دا لرغونی اثر پـه کـوم دوران یـا زمـانې پـورې اړه لـري ، دقیقا ځوابولای شو.

**دکـــاربن ۱۴میتـــود**:د لومـړي ځل لپـاره نـامتوپـوه ډاکـټر ویـلارد لیبي(W.Libby) پر ۱۹۴۰م کـال د کـاربن ۱۴مـه مسـاله مطرح کـړه او بیا وروسته هندي ساینس پوه (H .devries) دې طریقې تـه وده ورکـړه او د کاربن خصایل یې په سستماتیکه تـوګه توضیـح کـړل او هـم یـې د لرغونپوهـانو لپـاره ددې طریقـې څخـه د ګټې اخسـتنې زمینـې برابـرې کړې . ددې میتود په وسیله کېدی شي په حیواني او انسـاني فوسیلونو کې د کاربن د مقدار او اندازې ټاکلو او د هغـې اندازې لـه مخې د هغـه فوسیل تاریخ په دقیقه توګه څرګند شي.

ټول ژوندي موجودات ، انسان، حیوان ،د خپل ژوند د پیـل لـه لومـړۍ لحظې څخه بیاتر نـنه پورې له خپل طبیعـي چاپیریـال څخـه د ازاد کـاربن چې ۱۲اتومـي وزن لـرې ځان تـه جذبـوي ، اوددې کـاربن اتومـي وزن لـه لاړمو ترکیباتو وروسته پر کاربن ۱۴ اوړي.چـې ایزوتـوب کـاربن هـم ورتـه وایې په دې ډول دا پروسه دوام مومي چې ژونـدی موجود خپـل ژونـد لـه لاسه ورکوي.

هغـه وخت چې ژونـدي موجود خپـل ژوندلـه لاسه ورکـړ، لـه همـاغې لحظې څخه دا پروسه بر عکس پیلېږي په دې مانا چې نور ژوندی موجود ژوند نه لري چې کاربن له اتموسفیر څخه جذب کړي، نـو ځکـه د ژونـدي موجود له مړینې وروسته سملاسي د کاربن ازاد بدل پیلېږي، دهغو تجربو

له مخې چې په هند او امریکا کې د همدې طریقې د ټاکلو لابراتوار ونو په وسیله تر سره شوي دي،څرګنده شوې ده چې د یوه ژوندي موجود دژوند په جریان کې جذب شوي کاربن په نیم نیم ډول د زمانې په تېرېدو سره لږېږي. ددې مطلب د ښه توضیح لپاره یوه بېلګه چې پر فرضیې متکې ده په نظر کې نیسو.

که چېرې له یوې لرغوني سیمې څخه د سپړنو په ترځ کې یو داسې فوسیل چې د تاریخ ټاکنې لپاره منا سب وګڼل شي ، ترلاسه شي ، په هغه صورت کې نوموړی فوسیل د انتروپالوجي یا بیولوژي لابراتوار ته لېږل کېږي چې څرګنده کړي د نوموړي فوسیل په وجود کې څومره کاربن ۱۴ شته او یا څومره کاربن ۱۴ پاتې دي ؟ که داسې فرض کړو یو داسې فوسیل چې اوږدوالی یې ۲۰ سانتي متره او سور یې ۵ سانتي متره وي ، دخپل ژوند په اوږدو کې یې د ۱۰۰ ګرامه کاربن ۱۴ د جذب او منلو ظر فیت درلود او په هماغه اندازه کاربن ۱۴ یې د مړینې تر لحظې په ځان کې ساتلی دی . خو اوس په نوموړی فوسیل کې ۱۲،۲۵ ګرامه (دولس نیم ګرامه ) کاربن ۱۴ شته .(۴:ش)




۵۷۳۰کاله ۵۰ ګرامه

۵۷۳۰ کاله ۲۵ ګرامه خرګنده شوه چې په ۱۷۱۹۰ کاله

۵۷۳۰ کاله ۱۲ ګرامه کې ۸,۷ فيصده کاربن ۱۴

۱۷۱۹۰ کاله ۸,۷ګرامه د فوسيل څخه ازاد شوي دي

ويلادليبي او له هغه وروسته فريس هالندي لرغونپوه ثابته کړه چې په هرو ۷۵۳۰ کلونو کې ټول جمع شوي کاربن ۱۴ نيمايي ته راټيټيږي په دې ترتيب ۵۰ ګرامه کاربن ۱۴ پاتې شوي دي. بيا وروسته ۷۵۳۰

کاله تېرشوي دي چې د کاربن ۱۴ اندازه ۲۵ ګرامه ته ورسېده او له هغه وروسته بیا ۷۵۳۰ کاله تېر شوي چې د کاربن ۱۴ اندازه ۱۲ ګرامه ته رسېدلې ده. په دې ترتیب د محاسبې نتیجه به داوي چې ۱۷۱۹۰ جمع یا منفي ۱۰۰ کاله وړاندي د نوموړی فوسیل ټوله جسد ژوند کاوه.(۶۵:۳۴)

۲ ــ **د پالیومګنیتي میتود** : له دې طریقې یا میتود څخه کار اخستنه نسبتا اسانتیاوې لري.زیات شمېر لرغونپوهان هڅه کوي چې ددې میتود د موادو په شتوالي کې د لرغونو اثارو تاریخ اوزمانه څرګنده کړي، په پښتوژبه کې دپالیومګنیتي معادله اصطلاح ته( لرغوني مقناطیسي سمت ) په ډول افاده کېږې. پالیود لرغوني مانا اومګنیتي د مقناطیس په مانا کارول شوي دي.

له دې میتود څخه د کار اخستنې پر وخت هغه لاژم مواد او معلومات چې و کولاي شي ګټور ثابت شي، باید وي د بېلګې په توګه په دې میتود کې د ځمکې د اوسنی مقناطیسي لوري په هکله معلومات او همدا شان هغه خاورین لوښي چې په پخوانیو زمانو کې پاخه شوي دي د هغو مقناطیسې لوري هم باید څرګند شي چې د نوموړو دوومقناطیسي لورو ترمنځ فاصله وښودل شي او په دې ترتیب د یوه لرغوني اثر دقیق عمر او تاریخ په ګوته کړي. (۱۸:۳)

د ځمکپوهنې علم (جیولوجي ) پوهانو ثابته کړې ده چې د ځمکې مقناطیسي لوری او سمت د هر کال په جریان کې په یوه ټاکلې اندازه تغیر کوي، او برعکس د هغه خاورین پاخه شوي لوښي چې په پخوانیوزمانو کې پوخ شوی دی، مقناطیسي لوري په هماغه حالت ځای پرځای پاته کېږې چې د هغه وخت د ځمکې مقناطیسي لوری و. په دې ډول د ځمکې مقناطیسي لوري پرله پسې تغیر خوري اود خاورین لوښي د پخېدلو دقیق او مطلق عمر او تاریخ ټاکلی شو (۴۷:۳۴ ) (ش:۵)

د پورتني شکل د توضیح په صورت کې روښانه کېدی شي چې هغه لرغوني خاورین لوښي چې ددې سیمې د سپړنو په نتیجه کې لاس ته راغلي دي ۹۰۰۰ کاله وړاندې له اومو ختو څخه پر پاخه لوښي اوښتي دي. که داسې فرض کړو چې د ځمکې پوهنې د علم پوهانو د خپلو څېړنو نتیجې دا ډول اعلان کړې چې د ځمکې اوسنی مقناطیسي لوري د (A) ویکتور لوری دی، اوهمداشان د پخوانې جوړشوي خاورین لوښي مقناطیسي لوري د B ویکتور دی، په دې ډول ددې دوو ویکتورونو د تقاطع په نتیجه کې یوه قایمه زاویه چې ۹۰ درجې لرې منځته راځي. اوله بلې خوا فرض کوو چې د هرو سلو ۱۰۰ کالو په جریان کې د ځمکې

مقناطیسي لوری یوه درجه تغیر کوي. ددې فاصلې د معلومولو لپاره
چې یوه قایمه زاویه یې جوړه کړې ده، یوه مجهوله معادله راپیداکېږي.
په دې ترتیب چې د ځمکې دمقناطیسي لوری د هرو سلوکالو په جریان
کې یوه درجه تغیر پیداکوي،نو څوکاله لازم دي اویا څو کاله باید
تېرشوي وي چې د ځمکې مقناطیسي لوری او د خاورین لوښي د
مقناطیسي لوري ترمنځ ۹۰ درجې فاصله منځ ته راغلې ده؟ په دې ترتیب
څرګنده شوه چې ۹۰۰۰ + ۱۰۰ کاله وړاندې نوموړی خاورین لوښي پوخ
شوی دی اوهغه لرغونې سیمه چې نوموړی اثر له هغې سیمې څخه
ترلاسه شوی دی پر کار وړی او ګټه یې ترې اخستې ده.( ۳:۱۹ )

د یادونې وړ ده چې پورتنی فرضیه د یوې ټاکلې څېړنې نتیجه نه ده،
بلکې یوازې د موضوع د ښه فهم لپاره دفرضیېپه توګه مطرح شوې ده،په
داسې حال کې چې د خاورین لوښي د پخېدلو تجربې د ۹۰۰۰ کاله پخوا
انساني ټولنو له خوا نه دي تر سره شوي یا په بله مانا د خاورینولوښود
پخېدلو لومړنی تجربې له ۵۰۰۰ تر ۶۰۰۰ ق م کاله پخوازمانوپورې اړه
لري.

**ددندروکرونولوژي میتود:** د لومړي ځل لپاره انګلیسي
لرغونپوه ډاکټر ډاګلاس له نوموړي میتود څخه دلرغونواثارود تاریخ
ټاکنې لپاره ګټه واخیستله، ددې میتود اصطلاح له دریویوناني کلمو
څخه ترکیب شوېده چې د ندرو(Dendro ) د ونې په مانا کرونو Crono
دزمانې اولوجي Logy د پوهې په مانا کارول شوي دي، له دې اصطلاح
څخه هدف د ونې په وسیله د عمر اوتاریخ ټاکنې میتود دی.

د لرغونپوهانوپه نظر د نوې ډبرې د دورې انساني ټولنو د لومړي ځل
لپاره داوسېدنې ځایونه یا استوګنځي رایج کړ ل. ددې استوګنځي په
جوړولو کې د ونو له تنو څخه کار اخیستل شوی دی چې ددې ونو تنې
کولای شي د همغی لرغونې سیمې د تاریخ ټاکنې په هکله مرستندوی

وګرځي.

د کرنې پوهانو دا ثابته کړې ده چې دهرې ونې په تنه کې د هر کال په تېرېدو سره یوه حلقه چې دایروي شکل لري منځته راځي. دا هره دایروي حلقه د هماغه کال په جوي شرایطو پورې اړه لري چې د حلقې عرض زیات وي او که لږ. په هغو شرایطو کې چې ونې د ودې لپاره وړ وي دونې د حلقې عرض زیات وي او برعکس که چېرې دونې لپاره مناسب او وړشرایط برابرنه وي پر هماغه کال د ونې حلقه باریکه او کم عرضه وي. په دې ترتیب کولای شو چې د ونې د تنې له حلقو څخه د کالونو څرنګوالی او د چاپېریال د شرایطو د روښانتیا سربېره دونې د تنې له حلقو څخه د هغې ونې عمر هم وټاکو.

ډاکټر ډاګلاس د ونو د څو تنو د ورته حلقو په محاسبه وکړای شول چې د نوموړو ونو تاریخ روښانه کړي او همداشان د لرغونې سیمې په نږدې کې له یوه ځنګله څخه د پخوانۍ ونې د قطع کېدلو او د هغې دتنې په حلقو کې د یوې مشابه حلقې په پیداکولو سره وکولای شول چې د لرغونې سیمې دقیق عمر او تاریخ وټاکي (۴ ش)












٥

که چېرې داسې فرض کړو چې له دریولرغونو سیمو څخه چې یو او بل ته نږدې واقع دي له هرې یوې لرغونې سیمې څخه دونې یوه داسې تنه په لاس راشي چې د حلقو ورته والی په کې ولیدل شي اوهغه په دې ډول چې له A سیمې څخه لاس ته راغلې ونې ټولې حلقې ۱۰۰ ته رسېږي او وروستۍ یااخري حلقه چې د سلو شمېره لري هغه د B له سیمې څخه لاس ته راغلې ونې له لومړۍ حلقې سره برابر وي اویا مشابه وي، او په همدې ترتیب له B له سیمې څخه لاس ته راغلې ونې چې ټولې حلقې یې ۲۰۰ حلقو ته رسېږي چې وروستنۍ یا دوه سوومه حلقه یې له D سیمې څخه لاس ته راغلې ونې له لومړۍ حلقې سره سمون خوري چې د ټولو حلقو شمېر یې ۳۰۰ حلقو ته رسېږي په دې صورت کې ویلای شو چې:

له A سیمې څخه لاس ته راغلې ونې سل کاله ژوند کړی دی اوهغه وخت چې داونه قطع کېدله پر هماغه کال له B سیمې څخه لاس ته راغلې ونې د ژوند لومړی کال و، اوله B سیمې څخه لاس ته راغلې دونې ژوند ۲۰۰ کاله و، هغه وخت چې د اونه قطع کېدله پر هماغه کال له D سیمې څخه لاس ته راغلې ونه ایښودل شوې اود ژوند لومړی کال یې و، دې ونې هم ۳۰۰ کاله ژوند وکړ.

ددې نتیجې تر لاسه کېدلو وروسته لرغونپوه څېړونکی هڅه کوي چې داسې یوه ونه د همدې لرغونې سیمې په نږدې ځنګلونو کې پیداکړي چې له D سیمې څخه لاس ته راغلې ونې له یوې حلقې سره یې حلقه برابره وي او یا سمون وخوري. په هغه صورت کې چې لرغونپوه څېړونکی پر دې

بريالی شي چې يوه داسې ونه پيداکړي، په هغه وخت کې د هغې ونې حلقې هم محاسبه کېږي، او په نتيجه کې روښانه کېږي چې د A سيمې ونه څوکلنه وه د B سيمې ونه څوکلنه اوپه دې ترتيب د ټولو ونو د عمر محاسبه کېږي او په پای کې د لرغونې سيمې د عمر اوتاريخ دقيق وخت او زمانه څرګندېږي محاسبه په دې ترتيب سره ترسره کېږي.

| دسيمې نوم | دونو د حلقوشمېره |
|---|---|
| A | ۱۰۰ حلقې |
| B | ۲۰۰ حلقې |
| C | ۳۰۰ حلقې |
| داوسنۍونې تنه | ۱۵۰ حلقې |
| مجموعه | ۷۵۰ حلقې |

په دې ترتيب څرګنده شوه چې د A سيمې ونه ۷۵۰ کاله وړاندې اينبودل شوې، چې تر سلو کالو ژوند کولو وروسته د هماغه وخت اوسېدونکو پرې کړې او له هغې څخه يې د عمارت ياد اوسېدنې د ځای په جوړولو کې، ګټه اخيستې ده. (۲۸:۳)



# لنډيزاو پايله

لرغونپوهنه د يوې خپلواکې پوهې په څېر نسبتانوې څانګه ده، چې د هدف اوغوښتنې له مخې د تاريخ له علم سره ورتـه والـي لري. د تـاريخ او لرغونپوهنې ترمنځ ورتـه والـي پـه دې ټکـي کـې نغښتـي دى چـې دواړه پوهې د انساني ټولنو شاته پاتې شوى حالت راڅرګندوي.

خوددې دواړو ترمنځ توپيرونه هم شته چې د همدې توپيرونوله وجې د لرغونپوهنې علم خپلواکه وده کړېده. تاريخ دانسان د ژوندانه هغه برخې تر څېړنې لاندې نيسي چې ليکدود او د ليکنې لپاره يې وسايل او زمينې پيداشوي دي.خو لرغونپوهنه پـه زياتره تـوګه د انسـاني ټولنو د ژوندانـه بهير د پيدا ښت له لومړنيو دورو څخه بيا د لومړنيو مدنيتونو تر منځ تـه راتللو پورې زمانى واټن تر څېړنې لاندې نيسي. لکه چې څرګنده ده هيڅ يوه پوهه په يوازې توګه نه شي کولې خپل هدف ته ورسېږي او هيلې يې

تر سره شي، مثلا دا چې له نورو علوموسره د مرستې منظمې اړیکې ولري، لرغونپوهنه هم له نورو علومو څخه مرسته غواړي، د علومو هغه څانګې چې د څېړنې مواد یې په پخوانیو زمانو پورې اړه لري، لرغونپوهنه له هغو علومو سره مرسته کوي، اوهغه علوم چې د لرغونپوهنې دځینو خاصو ستونزو د حل په برخه کې مرستندوی واقع کېږي، له هغو علومو څخه مرسته غواړي، په داسې حال کې چې له ځینو علومو سره مرسته کوي اوله ځینو مرسته تر لاسه کوي.

لرغو نپوهانو له خپلو علمي څېړنو څخه د منطقي او علمي نتیجو دلاس ته راوړلو لپاره په ساحوي څېړنو کې یو شمېر تکتیکونه او میتودونه منځته راوړي دي چې له نوموړو میتودونو څخه په کار اخستنې سره کېدی شي لرغوني سیمه په پر پله پسې توګه وسپړل شي، او د علمي څېړنې لپاره یې لاس ته راغلي اثار وړاندې کړی شي د لرغوني سیمې ټاکنه، د ټاکل شوې سیمې په اړه د جغرافیایي، تاریخي شفاهي ا و مادي معلوماتو تر راټولولو وروسته په علمي توګه د لرغوني سیمې د سپړنې امکانات اوزمېنې څرګند ولاې شو.

دنړۍ په ګوټ ګوټ کې د بېلا بېلو ادارو او موسسو له خوا د لرغونو سیمو سپړنه او څېړنه دوام لري، د هرې سیمې د ایجاباتو له مخې د سپړنې چارې تنظیمېږي. خو ددې علم د غټو او اساسي میتودونه ته منځ توپیر منځ ته نه راځي. په دې مانا چې په هره سیمه کې هر وخت چې وي لرغونپوه څېړونکی باید ځینې هغه میتودونه او لارې عملي کړي چې د لرغونپوهنې د څېړنیزمیتود په توګه پېژندل شوي دي. د سیمې په هکله د معلوماتو راټولول، د سیمې دیوې عمومي نقشې رسمول، د سپړنې عملیاتي پلان ترتیبول، تر څېړنې لاندې ساحه پر مربعاتو ویشل، د اثاروله سایټ(site)څخه په منظمه توګه د عکس اخیستل، او داسې نور میتودونه اوپرنسیپونه دهرې سیمې اوهرې زمانې د سپړنیزو چارو لپاره ضروري دي.

هغه وخت چې له یوې لرغوني سیمې څخه د سپړنو په بهیر کې لرغوني اثار تر لاسه شي، په طبیعي ډول د هغو اثارو د بیاجوړولو او

ساتنې مساله مطرح کېږي. ددې مسالې په اړه لرغونپوهان په موزیمونوکې خاص لابراتوارونه چې د لازمو وسایلو له پلوه مجهز وي تاسیس او ایجادوي، په دې ډول لابراتوارونو کې دلرغونواثارود بیاجوړونې او ساتنې لپاره د خاصو طریقو په کار اچولو سره پرله پسې علمي هڅې ترسره کېږي، د خاورینولوښو د بیا جوړونې ځانته میتود ونه، د ډبرینو وسایلو ، فلزي، عضوي اونورو اثارو د بیا جوړونې لپاره ځانته میتودونه کارول کېږي،چې له یوې خوا د اثارو کیفیت او کمیت وساتل شي اوله بلې خوا د علمي څېړنو د سرته رسولو لړۍ ته زمینې برابرې شي.

دلرغونپوهانو له خوا د لرغونواثارو د هر اړخیزې څېړنې لپاره یو لړ پرنسیپونه کارول کېږي، لړتر لړه د هر لرغوني اثر د کره کتنې لپاره د اثر د شکل تحلیل او کره کتنه،د اثر زماني اومکاني کره کتنه، داثارو سیاقي تحلیل او په پای کې داثارودنقش د( چلند ) تحلیل او کره کتنه د لرغونپوهانو له خوا ترسره کېږي، چې دا پروسه په حقیقت کې د اثر هر اړخیزه پیژندنه ده. د اثارو په پورتني ډول تحلیل او کره کتنې سره کېدی شي چې تر څېړنې لاندې اثارو د پیدایښت زمینې ، د کار اخیستلو مواد ، د جوړیدلو طریقې او په فرهنګي لحاظ د هغه اثر په ارزښت پوه شو او علمي نتیجې تر لاسه کړو.

د لرغونو اثارو تر تحلیل او کره کتنې وروسته یوه اساسي او بنیادي پوښتنه رامنځته کېږي چې تر لاسه شوي اوتحلیل شوي لرغوني اثار په کومو دوراو زمانو پورې اړه لري؟ ددې پوښتنې لپاره هم لرغونپوهانو یو شمېر خاص میتودونه ایجا د کړي دي چې له هغو څخه په کار اخستنې سره دا ډول پوښتنو ته ډاډه ځوابونه ترلاسه کولای شو، د لرغونو اثارو نسبتي تاریخ ټاکنه په تتراتیګرافي، ستریشن، تیپولوژي، اونوروطریقو سره پیداکولای شو، خود اثارو د عمردقیق تاریخ د یو شمېر نورو طریقو لکه کاربن ۱۴ ، د ندروکرونولوژي ،پالیومګنیتي، او نوروطریقو لکه د نایتروجن مقدار د فلورین مقدار په هډوکی کې اوپه داسې نوروطریقوسره په ډاډمنه او قاطع توګه د لرغونواثارو تاریخ ټاکل

کېږي.

په هر صورت ددې ټولو مسایلو له بیان او څرګندولوڅخه لاندې پایلې په ډېرلنډیز سره تر لاسه کولای شو:

۱ــ لرغونپوهنه د علمي مسلك په توګه د زیاتو پوهانو او مینه والو د پاملرنې وړ ګرځیدلې ده. د علومو په منځ کې ټاکلی ځای لري، ځینو علومو سره مرسته کوي او له ځینو علومو څخه مرسته تر لاسه کوي. او دا پوهه خپلو هدفونو ته د رسېدلو لپاره علمي او عملي منل شوي میتودونه کاروي.

۲ــ د لرغونواثارو ارزښت یوازې هغه وخت لاړیاتېدلای شي چې د لرغونپوهنې له علمي میتودونو څخه د لرغونوسیمو په سپړنو کې ګټه واخستل شي. که چېرې دا مېتودونه ونه کارول شي داثاروارزښت به ټیټ اود فهم وړبه نه وي.

۳ــ ددې علم دودې او پراختیا لپاره د هېوادونو د حکومتونو له خوا بېلا بېلې موسسې او اداري منځته راغلي او د ودې لاره یې وهلې ده.

د نړۍ په ټولوهېوادونو کې ددې علمي څانګې له هځو سره پوره ملاتړ شته، خاصتا په هغوهېوادونو کې چې د لرغونو زمانوډ ویاړونو او بریاوو ادعا لري دلاړیاتې پاملرنې وړګرځېدلې ده.

# اخځونه


۱_ الهام. محمدرحیم. (په ادبي تاریخ لیکنه کې د میتود ضرورت ) دادبي تاریخ میتودولوژي. (کابل : دولتي مطبعه ) ۱۳۶۷ل کال.
۲_ بابایوف. اکتم. غلام احمد واك. باستانشتاسي افغانستان (کابل : پوهنتون کابل) ۱۳۶۳ .
۳_ بابایوف. اکتم. باوري اصول وتحقیقات باستانشناسي (کابل . پوهنتون کابل ) ۱۳۶۳ .
۴ _برونوف. ادوارماقبل التاریخ. ژباړه: سیدسلطان شاه همام (کابل. پوهنتون کابل ) ۱۳۵۹ .
۵_ تالقاني ، نورالله ، افغانستان ماقبل اریایها (کابل: مطبعه دولتي ) ۱۳۶۳ .
۶_ پولادیان . عبدالجلیل (تاریخچه تحقیقات مشترك باستانشناسي افغان فرانسه) باستانشناسي افغانستان ، شماره اول. سال ۱۳۶۳ .
۷_ چایلد ، گورون، مسیرتاریخ ، ژباړه : بهنام (تهران ) ۱۳۴۵
۸_ حیدري . ځلمي ،( باستانشناسي چیست وچگونه در افغانستان بوجود امد ) باستانشناسي افغانستان ، شماره اول سال ۱۳۶۰ .
۹_ ځدراڼ الف شاه . اصول ومبادي باستانشناسي ، ( کابل : پوهنتون کابل ) سال ۱۳۵۹ .
۱۰ _ ځدراڼ الف شاه . مبادي بشر شناسي . (کابل :مطبعه

تحصیلات عالي ) سال . ۱۳۶۳ .
۱۱_ خدران الـف شاه . مسـکوکات ، کتیبـه ۴ وابـدات باسـتاني افغانستان ( کابل : مطبعه پوهنتون کابل ) ۱۳۶۳ .
۱۲_روهي، محمد صدیـق ، دادبـي خیړنـو لارښود . کـابل : دولتـي مطبعه ) ۱۳۶۴ .
۱۳_ روزنفیلد . جان .م . هنر دوره کوشاني ، مترجم : سرور همایون . (کابل : دولتي مطبعه ) کال ۱۳۶۱ .
۱۴_ سریانید ، و، گنجینـه کوشـاني هـای بـاختر ، مـترجم : حبیـب اعظمی (کابل : مطبعه دولتي ) ۱۳۶۱ .
۱۵_ سـلاوین ،و، ا، جیولوجـي عمومـي . (مسـکو : نشـرات مـیر ) ۱۹۸۴م کال.
۱۶_ صدقي . عثمـان . شهر هـای تـاریخي اریانا . کـابل : بیـهقي ) ۱۳۵۴ .
۱۷_ فضلان ابن ، سفرنامه ابن فضلان مترجم طباطبای (تهران : بنیاد فرهنگ ایران ) ۱۳۴۸ .
۱۸_ فانیـان . خسـرو ، ( روابـط فرهنـگ هـای کلکو لتیـك ) بـر رسـي هـای تاریخي . شماره ۶ ( تهران ،تهران پوهنتون ) ۱۳۵۰ .
۱۹_ کـهزاد ، احمدعلی ، (گزارشـهای چهل سـاله باستانشناسـي در افغانسـتان ) سـالنامه افغانسـتان کـابل : مطبعـه دولتـي ) سـال ۱۳۳۷ و ۱۳۳۶ .
۲۰_ کـهزاد . احمدعلی . ( مسـکوکات مـاقبل التـاریخ افغانسـتان ) سالنامه افغانستان (کابل :مطبعه دولتي ) ۱۳۱۶ .
۲۱_کهزاد . احمدعلـی ، افغانسـتان درپرتـو تـاریخ . ( کـابل : دولتـي مطبعه ) ۱۳۴۶ .
۲۲_ مسـون . وادیـم ( د افغانسـتان زوړ تـاریخ ) مـترجم زمـری محقق باستانشناسي افغانستان . شماره دوم ، ۱۳۶۰ .
۲۳_ میرحسین شاه . ارشیف شناسي .(کابل : پوهنتون کابل )
۲۴_ وینوگراوف ، الکسي .حفظ وباز سازي اثار باسـتاني . مترجم

. (کابل : پوهنتون کابل ) ۱۳۶۸ حضرت بني پور.
۲۵ _ موزيم ، ملي . نمايشگاه اثار ضبط شده قاچاقي (کابل : دولتي مطبعه ) سال ۱۳۶۳.
۲۶_ قانون حفظ اثار تأريخي و فرهنگي افغانستان . قوس . ۱۳۵۹
۲۷_ يوتوزي . ماوريز . (تجارت لاجورد درهزاره سوم ق.م.) مترجم : يوسفزي باستانشناسي افغانستان ۱۳۶۰.
۲۸ _ يوسفزی . عبدالظاهر . ( اصطلاحات باستانشناسي ) باستانشناسي افغانستان شماره دوم ۱۳۶۰.

۲۹ _ باوري .محمد رسول :د کوشاني او يفتلی شاهانومسکوکات ) اجتماعي علوم دريم کال لومړی گڼه کابل پوهنتون.کابل ) ۱۳۶۹.

دبهرنۍ ژبې اخځونه

30- Nancy Hateh Dupree . An Historical Guide to Afghanistan . (Kabul : Afghanistan ).1977.
31- Encycloaedia Britannica .volume 15 1958.1962.
32- The World book (Encyclopaedia).1958
33- Archeolgische Almanak . Archeologisch Informatie Centrum .1992 leiden
34- Deeben and E. Drenth . Bijdragen aanhet Onderzoek naar de Steentijd in Nederland .1998
35- Prismavan de Archeologie ,2000 begrippen van A tot Z. 1996



## په دې کتاب کې:

- لرغونپوهنه څه شی دی.
- له نورو علومو سره د لرغونپوهنې اړیکې
- دلرغونو اثارو بیا جوړونه.
- د لرغونو اثارو تحلیل او کره کتنه.
- دلرغوني اثر زماني او مکاني تحلیل او کره کتنه
- دلرغونو اثارو دتاریخ ټاکنې میتودونه.

دلرغونو اثارو دڅېړنې،پلټنې او کیندنې په اړه په لسګونو مطالبُ ځای کړای شوي دي. په پښتو ژبه د لرغونپوهنې په برخه کې دا اثر خورا ګټور اثر دی.

دافغانستان دکلتوري ودې ټولنه - جرمني

VEREIN ZUR FORDERU... DER AFGHANISCHEN KULTUR E.

د خپرونو لړ (۳۰)